مرکز ته د احتیاط په بست کې تبدیل شم او د نوي قوماندان تر مقررېدو پورې د امنیت آمر کفالتاً کار وکړي. والي له خپله ځایه پاڅېد او په نخا یې پیل وکړ، ما هم د کوکاکولا گیلاس د شرابو په توگه ورسره پورته کړ او مونږ دواړو د شپې ډوډۍ وخوړه. مکتوب او علم و خبر مې چې له مخکې نه له ځانه سره راوړي ؤ ورباندې لاسلیک کړ او بالکل له خپل کار نه ډاډه شوم. په دې وخت کې د لوگر والي محمدخان آفت چې وروسته بیا د محمد خان پیکر په نوم مشهور شو کور ته راننوت. له سلام او روغبړ نه وروسته دواړه د دشت ارچي ولسوالۍ په لور د یو تن خپلوانو په واده کې د گډون لپاره چې سبا ته ترسره کېده روان شول. والي دنده راکړه چې تر راتگه پورې یې کفالتاً په سمنگان کې دنده ترسره کړم او سبا ته چې د حاجیانو د قره کشۍ ورځ ده زه شخصاً په خپله د والي په غیاب کې دغه کار ترسره کړم. له ما سره یې خدای پاماني وکړه، هغوی کندز ته او زه خپل کور ته روان شوم.

د والي نشتوالی زما دپاره یو ښه چانس ؤ، ځکه د وزارت د مقام او د سمنگان د امنیه قوماندانۍ په نوم مکتوبونه او علم و خبر مې سبین په والي لاسلیک کړي وو که نه ډېر اندېښمن وم چې که سبا ته هاشم دقیق او نور که مې د کابل له تگ نه خبر شي، کیدای شي د والي نظر واړوي. دا اندېښنه مې هم د والي په تللو سره رفع شوه. سبا ته مې دواړه مکتوبونه د ولایت له اداري مدیریت نه د وزارت او سمنگان د امنیه قوماندانۍ په عنوان صادر کړل او د علم و خبر پاڼه مې له دوایرو څخه په دې پلمه ډکه کړه چې د امنیې قوماندان په یو مسلکي کورس کې د گډون لپاره د دریو میاشتو په مخه کابل ته ځي، او د دریو میاشتو معاش باید په کابل کې واخلي. د حجاجو قرعه کشي مې د والي له هدایت سره سمه ترسره کړه، له غرمې وروسته په ۲ بجو مې له مامورینو او د امنیت له آمر سره خدای پاماني وکړه، له الله داد طوفان سره مې د کندز د والي صاحب جان صحرایي په کور کې په ټیلفون خبرې وکړې، د ناروغ د روغتیایي وضعې د وخامت او د حاجیانو د قرعه کشۍ د ترسره کولو په اړه مې ورته وویل، اجازه مې ورنه واخیسته چې د کابل په طرف حرکت وکړم او په دې ترتیب مې د هاشم دقیق د ترور پلان شنډ او ځان ته مې نجات ورکړ.

## د ژاندارم او پولیس عمومي قوماندان له خپلې تیلفوني موافقې څخه منکر شو:

د چارشنبې ورځ وه، د خپلې تبدیلۍ مکتوب مې د تیلفوني موافقې په اساس د سمنگان له ولایت نه راوړی ؤ. عمومي قوماندان (ترون) ته مې وړاندې کړ. عمومي قوماندان په ډېر بنه چلن سره مکتوب ولوست او په خپل قلم یې د مکتوب په څنډه کې زما د تبدیلۍ په اړه د احتیاط په بست کې ولیکل. څو دقیقې یې په دفتر کې ناست وم، د سمنگان ولایت د اوپراتیفي حالت د څرنگوالي په هکله مې ورته ډېر لنډ معلومات وړاندې کړل، مکتوب یې پېژندوال جگړن حی گل خان ته وسپاره او د استراحت لپاره کورته لاړم. د شنبې په ورځ چې وزارت ته راغلم، وضعیت بالکل بل ډول ؤ. عمومي قوماندان له خپلې تیلفوني موافقې نه چې د سمنگان ولایت نه یې مرکز ته زما د تبدیلۍ په اړه د سمنگان له والي سره کړې وه گرځېدلی ؤ، په تریو تندي یې راته وویل: «ته باید خپلې وظیفې ته سمنگان ته لاړ شې، ستا تبدیلي دې د اوس لپاره ځنډېدلې وي، څه وخت وروسته به په تعیناتو کې ستا د مشکلاتو په پام کې نیولو سره تا داسې یو ولایت ته تبدیل کړم چې مجهز روغتون او متخصص ډاکتران ولري، اوس خپلې دندې ته لاړ شئ او بس.» د پېژندوال دفتر ته ورغلم، د ترون خبرې یې تکرار کړې او ویې ویل: «د سمنگان ولایت د ولایتي کمیټې د مکررې غوښتنې په اساس چې په هغه ولایت کې ستا شتون ډېر اړین او اغېزمن دی، ترون هم له خپلې پخوانۍ موافقې نه گرځېدلی دی.»

وپوهېدم چې هاشم دقیق غوښتل په دې ترتیب ما بیا د مرگ خولې ته واچوي خو ما هوډ کړی ؤ چې پر هېڅ شان به بیا د سمنگان ولایت ته نه ځم، په دې فکر کې شوم چې د ترون نظر د هغه د خپلوانو او دوستانو په واسطه راواړوم، بې له دې چې د مرگ او ترور وېره ورته ووایم همدا د ناروغۍ پلمه ټینگوم او ترون قانع کړم. ډگروال بختیار گل منگل چې د ترون کاکاخسر ؤ، د پولیسو پخوانی قوماندان او زما د دوستانو له جملې څخه ؤ، کور ته ورغلم، ټول حقایق مې ورته بیان کړل او هغه

مې په دې راضي کړ، په هره طریقه چې کېږي زما تبدیلي د احتیاط په بست کې په ترون ومني او منظور کړي، پرته له دې به مجبور شم چې دنده پرېږدم. د سمنګان ولایت د هغه مکتوب فوتوکاپي مې چې په څنډه کې يې زما د تبدیلۍ په اړه عمومي قوماندان لیکل کړي وو هم له ځانه سره لرله. منګلي بشپړ ډاډ راکړ چې هرڅنګه کېږي ترون ته به تناعت ورکوي. د جمعې په ورځ به ترون سره له فامیله میلمه کوي، چې ترون د کورنۍ له غړو سره د مېلمستیا لپاره ورشي، نو هرو مرو به دا موضوع يو طرف ته کوي، د خپل کور د ټیلفون نمبر يې راکړ، چې د شنبې په ورځ لومړی د ټیلفون له لارې له موضوع نه ځان خبر کړم او بیا کور ته ورشم. هماغسې وشوه، د راتلونکې شنبې په ورځ منګلي ډاډ راکړ چې کار بشپړ شوی دی، په اطمینان سره ترون ته ورشم. د شنبې په ورځ لومړی پېژندوال او وروسته بیا له هغه سره یوځای ترون ته ورغلو، د احتیاط په بست کې او د کورنیو چارو د وزارت د ګډ کمیسیون د استازی په توګه د مالیې وزارت ته وروپېژندل شوم، په دې ترتیب مې د هاشم دقیق د ترور پلان یوځل بیا شنډ کړ او د مالیې وزارت ته لاړم.

## ګډ کمیسیون:

ګډ کمیسیون د مالیې د کورنیو چارو، عدلیې وزارتونو، د څارنوالۍ او د صدارت عظمی د محاسباتو د دیوان په استازو مشتمل ؤ چې د مالیې په وزارت کې يې د شاهي رژیم په یوې پرېږي دوسیې کار کاوه.

یو شمېر کورنیو او د پاکستان د صوبه سرحد سوداګرو د افغاني تجارتي جوازونو په واسطه د بهرنیو هیوادونو لکه جاپان، جرمني او نورو صنعتي هیوادونو څخه مختلف تجارتي مالونه خریداري کړي وو او بې له دې چې د کابل ګمرک ته راشي او محصول يې ورکړی د پاکستان د صوبه سرحد په بازارونو کې پلورل شوي وو، دغه مالونه د پاکستان د کراچۍ بندر له لارې وارد شوي وو، له دې امله د ترانزېټ په بڼه له پاکستان هیواد څخه تېر بدل، کوم محصول به يې نه ورکاوه، نو په دې ترتیب یو شمېر افغاني سوداګرو د صوبه سرحد د سوداګرو په

ملتیا بنایي څو کاله دغه کار ترسره کړی وي، چې دا کار د افغانستان د اقتصاد په وجود یو ګوزار ؤ.

په شاهي رژیم کې د وزیرانو په کچه یو لوړ پوړی کمیسیون په دې دوسیه کار کاوه، د سردار محمد داود په جمهوري رژیم کې د معینانو او رئیسانو په کچه یو کمیسیون په دې دوسیې کار کړی ؤ. دغې دوسیې د وخت په تېرېدو سره ورو ورو خپل ارزښت له لاسه ورکړی ؤ، خو د پانو او کاغذونو په لحاظ د یوې پرېړې او ضخیمې دوسیې په بڼه پاتې وه چې د تره کي په رژیم کې د دغې دوسیې د حل او فصل لپاره د مدیرانو په کچه یو ګډ کمیسیون د عدلیې، مالیې، داخله وزارتونو او لویې څارنوالۍ او صدارت عظمی استازي ورته ټاکل شوي وو. زه د کورنیو چارو د وزارت د استازي په توګه په دې ګډ کمیسیون کې شامل شوم. د نورو وزارتونو استازي هم د ناراضیانو له ډلې څخه وو، ټول ناراضیان سره یوځای شوي و، خو د اګسا له وېرې تر یوه وخته پورې یو په بل باندې بې اعتماده او بې باوره وو. د سیاسي او د ورځې د تازه پېښو په اړه مو هېڅ خبره نه کوله، د کمیسیون ټولو غړو دغه بې لاسو بې پښو دوسیه په نوبت سره لوستله، داسې سند چې د چا په مسئولیت دلالت وکړي په دوسیه کې موجود نه ؤ، په دوسیه کې شامل کسان څوک مړه وو، څوک تښتېدلي وو او څوک بې درکه وو.

زه ځکه په دې دنده خوښ وم، چې فکر مې کاوه د اګسا او مخالفینو له نظر نه پټ پاتې شوم، خو داسې نه وه، یوځه وخت یې له منګولو خوندي پاتې وم، خو دا په حقیقت کې زما اغفال ؤ، اصلاً زما د نیولو نوبت نه و رارسېدلی.

## د امریکا د متحده ایالاتو د سفیر وژل کېدل او د هغه د وینو قیمت (خونبها):

د امریکا د متحده ایالاتو سفیر مستر دبز په کابل کې د ۱۳۵۷ کال په نیمایي کې ګهیځ د ۹ بجو په شاوخوا کې کله چې د خپل موټر په سپرلۍ چې دیپلوماتیک

بیرغ وربانديځړېده د خپل سفارت په لور روان ؤ ، د کابل د نوي ښار په سیمه کې د ځلورو ناپېژاندو وسله والو لخوا وتښتول شو ، د کابل هوټل ته راوستل شو او په یوه کوټه کې واچول شو.

د کابل هوټل د ښار په زړه کې د جمهوري ارګ په پنځوس متری کې مرکزي بانک ته مخامخ موقعیت لري. د کابل د ښار پولیسو ظاهراً د سفیر د نجات لپاره د کابل هوټل محاصره کړ او عملیات یې پیل کړی وو ، د ژاندارم او پولیس عمومي قوماندان سید محمد داؤد ترون په خپله له تښتوونکو سره خبرې پیل کړی وې ، هېڅ د تښتوونکو له غوښتنو څخه خبر تیا نه درلودله ، هرڅه چې وو ترون ته معلوم وو ، خو تر پایه پورې افشا نه شوې او عام خلک ورباندې خبر نشول ، او تر ننه پورې څوک په اصل حقیقت پوه نشول.

د شوروي پوځي سلاکارانو د سفیر د خلاصون لپاره ډېرې لاس او پښې ووهلې چې په یو ډول سفیر ژوندی لاس ته راولی خو ترون د مشاورینو مشورې ته کوم ارزښت ورنکړ. د شوروي پوځي سلاکارانو په پای کې د سفیر د نجات او ژوندی په لاس راوړلو لپاره ترون ته داسې تجویز وړاندې کړ چې لومړی دې د امبولانس یو موټر له متخصص ډاکترانو ، لازمو درملو او د اړتیا وړ طبي سامان آلاتو سره د هوټل څنګ ته چمتو کړای شي. د جمهوریت روغتون د متخصصینو یو مجهز ګروپ دې چمتو شي ، بیا دې په تښتوونکو زهرجن ګاز وکارول شي او د بریښنا په څېر چټکۍ سره دې سفیر چې طبعاً هغه به هم مسموم شوی وي د امبولانس په واسطه روغتون ته ورسول شي او د اغېزمنو طبي عملیاتو په واسطه دې د هغه ژوند ته نجات ورکړ شي ، خو ترون ددې په خلاف د تښتوونکو کوټه تر اور لاندې ونیوه او د وسلو ډزې یې ورباندې پیل کړې او د ډزو په تبادله کې چې کله پولیس کوټې ته ورننوځي څلور تنه تښتوونکي او پخپله سفیر تول وژل شوی وو او موضوع پای ته ورسېده. په پایله کې شوروي سلاکاران خجالت او غوسه وو ځکه چې ددوی د مشورې په خلاف عملیات ترسره شول ، او عامو خلکو دغه چلن یو احمقانه او غیر انساني چلن وباله. په هرحال سفیر په یوه ماهرانه سیاسي لوبه کې ووژل شو. د

امریکا متحده ایالاتو د هغه په وژنه پرته له رواجي دیپلوماتیک پروتست نه بل کوم اقدام ونه کړ. د حیرانتیا وړ وه چې د سرې جګړې په دوران کې د نړیوال ځواک یو سفیر د شوروي اتحاد د یو ګوډاګي حکومت د عمالو لخوا وژل کیږي خو په ظاهره سره د امریکا متحده ایالات یوازې د سفیر د چوکۍ په کمی ساتلو باندې قناعت کوي او ان چې له افغانستان سره یې سیاسي اړیکې جاري ساتلې وې، خو خپل ژور پلانونه یې د شوروي د تجاوز د بدنامولو، د شوروي اتحاد د پلوي دیموکراتیک رژیم د نسکورولو، له افغانستان نه د سرو لښکرو له شرمه ډکو ایستلو، د افغانانو په واسطه د زرګونو افغانانو د وژلو، د ټولو تولیدي منابعو د لوټولو، د ټولو ملي او شخصي شتمنیو د چور کولو، او په ټول افغانستان کې د قومي، ژبني، مذهبي او سیمه ییزو تعصبونو پیدا کولو لپاره یو په بل پسې عملي کړل، چې په نتیجه کې د خپل سفیر د خون بها په بدل کې یې ټول افغانستان په کنډوالو بدل کړ، د افغانستان کور په کور کې یې د جګړې د اور داسې لمبې بلې کړې چې تراوسه د سفیر له وژلو شپاړس کاله تیریږي خو زمونږ په هیواد کې لا هم دغه لمبې بلې دي او په افغانستان کې د شوروي اتحاد له رسوایۍ او ناکامۍ وروسته کمونیزم په نړیواله کچه بدنام او تر خاورو لاندې شو، خو د امریکا په وړاندې لا هم د خپل سفیر خون بها نه ده پوره شوې، خپل پخواني دوستان یې چې د کمونستانو پرضد وجنګېدل اوس یې په خپل منځ کې داسې په جنګ اچولي دي چې اوس زمونږ هیواد د تجزیې له ګواښ سره مخامخ دی او تر دم ګړۍ پورې د افغان وینه د افغان له لاسه توییږي، نږدې ده چې نقشه یې د نړۍ له نقشې نه محوه او ټوله شي، خو همغه له موره مهربانه میاره چې ویل یې د شوروي اشغال په سیمه کې د کمونیزم پراختیا غوښتنه ده او د شوروي اشغال په افغانستان او سیمه کې اسلام ته خطر دی، اوس چې پر نړیواله کچه کمونیزم تس نس شویدی، اسلام په افغانستان کې څه ډول دی او د افغانستان ارضي تمامیت له کوم خطر سره مخ دی، اور د افغانانو په کورونو لګېدلی او د افغانانو او مسلمانانو پخوانی دوست په څه ډول عارفانه تجاهل سره زمونږ هیواد د نابودۍ او تباهۍ په لوري بیایي.

اوس ښایي د داسې فرصت په انتظار کې وي چې خپل کوم بل اجل نیولی سفیر په افغانستان کې وژلو ته وړاندې کړي او داځل د هغه په خون بها کې اسلام په افغانستان او سیمه کې له منځه یوسي.

## کیوبا ته د نور محمد تره کي سفر:

په افغانستان کې د مارکسیستي ماډل دولت بنسټ ایښودونکی نور محمد تره کی د فیدل کاسترو په بلنه د ناپییلو هیوادونو په کنفرانس کې د ګډون لپاره هاوانا ته سفر وکړ. پروګرام داسې جوړ شوی و چې تره کی د بېرته راستنېدو په مهال لږ شان په مسکو کې تم شي، دستور ترلاسه کړي او د شوروي له رهبر لیونید برژنیف او نورو مهمو اشخاصو سره ملاقات او تبادل نظر کړي. امین، د کارمل له شړلو څخه وروسته د چارو واګې په خپل لاس کې اخیستې وې او تره کی یې د ارګ د ماڼۍ په محوطه کې په تشریفاتو او شراب څښلو مصروف ساتلی ؤ او د سیاسي قدرت د سمبول په توګه یې هغه د بهرنیو مېلمنو، کوردیپلوماتیک غړو په ملاقاتونو او د سپورتي او بزکشۍ د لوبو په تماشه کولو مصروف کړی ؤ. امین په ډاډه زړه د فوق العاده اعتماد په ترلاسه کولو، دا د تره کی وفادار شاګرد، د تره کي د ګوښه کولو او د حزبي او دولتي لومړۍ مقام د لاس ته راوړو په هڅه لګیا و. کې جي بي د امین په دې ځیرکتیا او سیاسي زرنګۍ پوهېدلې وو او امین هم د خپلې یکه تازۍ ترڅنګ له شوروي سلاکارانو سره په ځانګړې چل سره ښې، دوستانه او تکتیکي اړیکې ساتلې وې.

خپل هدف ته د رسېدو لپاره یې د خپل ګروپ مهم ملکي او پوځي کادرونه په مهمو پوستونو باندې نصبول، د ګارډ قوماندان سید یعقوب او د ژاندارم او پولیس پخوانی عمومي قوماندان سید داود ترون یې د تره کی د خاصو یاورانو په توګه ځای په ځای کړي وو. د کیوبا په سفر کې ډاکتر شاه‌ولي او ترون د تره کی ملګري وو، ترڅو له هغو اوامرو او لارښودونو چې د افغانستان د راتلونکې په اړه یې شوروي رهبران تره کی ته صادروي بې خبره پاتې نشي. ببرک کارمل چې په پراګ کې

سیاسي پناه اخیستې وه او پټ شوی ؤ ، د شوروي رهبرانو او کې جي بي سره په تماس کې و او اسناد یې په لاس ورکول ترڅو خپل حریف امین د شوروي مقاماتو په وړاندې انتي سو تیست وروپېژني او بې اعتباره یې کړي.

تره کی دومره ساده مزاجه سړی ؤ چې د شوروي اتحاد له رهبرانو سره د خبرو ځانګړی مفاهیم چې باید د راز په ډول یې له ځانه سره خوندي او محرم ساتلی وای او په هغې کې د سمون راوستو هڅه یې کړې وای ، ددې په برعکس له برژنیف سره د مخصوص ملاقات نه وروسته په یوه غونډه کې چې په مسکو کې یې له افغاني محصلینو سره خبرې کولې په خپله وینا کې ویلي وو چې: «زمونږ د ګوند په دننه کې د سرطان یوه دانه راټوکېدلې ده ، چې افغانستان ته لاړ شم ، ددې خونړۍ دانې عملیات به کوم او د د. خ. ا. ګوند وجود به له دغې ناسور دانې څخه پاکوم.».

له سرطان دانې څخه د هغه موخه حفیظ الله امین ؤ چې د کې جي بي چارواکو او د اتحاد شوروي مشرانو د خصوصي ملاقات په ترڅ کې ورته د راتلونکي په اړه د امین له خطر څخه هغه ته راپور او مشوره ورکړې وه. مخکې له دې چې افغانستان ته ستون شي د محصلینو په غونډه کې یې هرڅه په ډاګه کړل ، همدا راز ډاکتر شاه ولی د بهرنیو چارو وزیر او د تره کی یاور تړون چې د امین له خاصو معتمدینو څخه وو په دې سفر کې یې قدم په قدم ټول پټ رازونه امین ته په ځانګړی شفر سره بیانول.

حفیظ الله امین د تره کی په غیابت کې د تره کی څلور پلوي وزیران د کورنیو چارو وزیر اسلم وطنجار ، د مخابراتو وزیر سید محمد ګلابزوی ، د ترانسپورت وزیر شیرجان مزدوریار او د اګسا رئیس اسدالله سروري له دندو ګوښه او غوښتل یې چې ویې نیسي خو هغوی د شوروي اتحاد سفارت ته پناه وړې وه او پټ شوي وو. د هغوی پرځای یې د خپل ګروپ کسان فقیر محمد فقیر د کورنیو چارو د وزیر ، انجنیر ظریف د مخابراتو وزیر ، خیر محمد د ترانسپورت وزیر او عزیز د اګسا د سرپرست رئیس په توګه وټاکل. خو له هاوانا څخه د تره کی د راستنېدو په مهال د هرکلي لپاره ډېر پرتمین او اغفالوونکی مراسم ترتیب شوي وو. له الوتکې څخه د

راکوزیدو له پورې، څخه د هرکلي کوونکو او هوايي ډګر د تشریفاتي ګارډ تر لیکو پورې ځمکه په قالینو فرش شوې وه، له هوايي ډګر څخه تر جمهوري ارګه پورې د سړکونو پر سر د ویاړ څو دروازې جوړې شوې وې چې د تره کي په تصویرونو او دولتي او حزبي بیرغونو باندې ښکلې کړای شوې وې، له هوايي ډګر نه تر ارګه پرې د لارې په دواړو خوا و د دولتي ادارو، وزارتونو، د حزبي او اجتماعي سازمانونو مامورین او کارکوونکي، نارینه او ښځینه زده کوونکي، نارینه او ښځینه محصلین له سرو بیرغونو او جنډوکیو سره د تره کي د روغتیا او هرکلي لپاره لیکه ولاړ وو، د لارې په دواړو خوا و د ژوندی دې وي تره کي او نور شعارونه تر سترګو کېدل. د تشریفاتو او هرکلي دا ډول مراسم په تېرو رژیمونو کې نه وو لیدل شوي. په هوايي ډګر کې چې کله تره کي د هرکلي کوونکو خواته راغی له امین څخه یې پوښتلي وو چې زما وزیران چیرې دي، موخه یې همغه څلور تنه وزیران وو چې دده په نشتوالي کې د امین لخوا ګوښه او پټ شوي وو.

په حقیقت کې نور محمد تره کي د هاوانا له سفر نه له راستنېدو او کابل ته په رارسېدو سره د امین تر ځارنې لاندې راغلی ؤ، ځکه کله چې له هوايي ډګر نه ارګ ته ننوت نو بیا د تلویزیون په پرده ونه لیدل شو.

## د نور محمد تره کي وژل:

د کیوبا سفر د تره کي او امین ترمنځ اړیکې دومره خرابې کړې وې او یو پر بل یې دومره بې باوره کړي وو چې یو د بل د له منځه وړلو سرحد ته یې رسولي وو. امین لکه د تره کي او کارمل د تخت او تاج غوښتونکی ؤ، په لومړني انشعاب کې یې چې د تره کي لوری انتخاب کړی ؤ هم په دې منظور و چې په لومړي سر کې د پرچم ډله کمزورې او بې وسه کړي او د تره کي په مشرۍ د ګوند پوځي چارې په خپل لاس کې واخلي. کله چې د سیاسي واک خاوند شي نو په هغه وخت کې به ورته د تره کي څنډې ته کول آسان وي، خو له کارمل سره یوځای به هېڅکله خپل هدف او مرام ته ونه رسېږي. همغه وه لکه چې موو ویل، د ثور د ۷ مې په کودتا کې یې ابتکار په

خپل لاس کې واخیست، د محمد داود دولت یې د یوې شپې او ورځې نه په کمه موده کې نسکور کړ او خلقیانو او پرچمیانو د قدرت واګې په لاس واخیستلې. امین ځان پرته د بل چا له ګډون څخه د دغه پاڅون او بریالیتوب وارث ګاڼه، وموليدل چې ببرک کارمل او د پرچم ډله یې څرنګه له خپلې مخه لرې کړل، اګرچې د تره کی په دولت کې د واک اصلي محور دده په شاوخوا راڅرخېده، خو سره له دې یې هم داسې تکتیک کارولی ؤ چې د تره کی په موجودیت او مشرۍ په چوکاټ کې دننه یې د قدرت درې ګونی ځواک له خپلو پلویانو څخه جوړ کړی ؤ او تره کي د یوې سمبولیکې بڼې په توګه د قدرت په ګدۍ ډډه لګولی وه، او د لږې مودې لپاره د هغه تر مشرتابه لاندې د وفادار شاګرد په توګه کار وکړي. کله چې پوه شو چې شوروي چارواکو کیوبا ته د سفر په لاره کې تره کی په حقایقو خبر کړی دی او د امین په اړه یې د هغه نظر ګرځولی دی، امین هم په ډېره هوښیارۍ سره د تره کی د له منځه وړلو لپاره اقدامات وکړل او هغه یې لکه د یوې بې جرړو او ورستې ونې په شان په خپل ځای پرېښود. تره کی هم کله چې له سفر نه راستون شو وپوهېد چې امین نور هغه وفادار شاګرد نه دی چې ویل به یې: «تره کی او ګوند یو تربله سره روح او تن دي، که روح نه وي تن بې روحه دی.» کله چې خبر شو په غیابت کې یې امین د هغه څلور تنه وفادار وزیران له کابینې څخه اخراج کړی دی، نو ښه ورته ثابته شوی وه چې د شوروي چارواکو اطلاعات رښتیا وو، باید په چټکۍ سره دا د ناسور دانه لکه په خپله یې چې ویلې وو د حزب او دولت له بدن نه لرې شي، خو هغه خوار کی ته پته نه وه چې دی په خپله له خپل فامیل سره په جمهوري ارګ کې د امین د محاصرې لاندې دي.

د کیوبا سفر نه تر راستنېدو درې ورځې وروسته په داسې حال کې چې د شوروي اتحاد سفیر پوزانوف له تره کی سره په ارګ کې شتون درلود، امین یې د یو اړین ملاقات له پاره ځان ته راوباله ترڅو هغه په ارګ کې دننه بې وسلې کړي او ویې نیسي، خو امین په پوره خبرتیا سره لکه د پخوا په شان له خپلو وسله والو ساتونکو سره له ختیځې دروازې څخه ارګ ته ننوځي، د تیر وخت په برعکس د دروازې

قوماندانۍ په کتابتون کې له خپلو همکارانو سره غونډه تشکیل کړم او د مسودې په جوړولو کار وکړو. دغه مسودې نژدې بشپړې شوې وې. طریقه داسې وه چې هر کمیسیون به د خپل ورځني کار په پای کې د برابرو شویو موادو په اړه له مرکزي کمیسیون سره چې مشري یې د امنیت رئیس غلام صدیق واحدي ورد ګ په غاړه وه تبادل نظر کوي.

د ۱۳۵۷ کال د ثور د میاشتې په شلورمه نېټه ما د مسودې کار بشپړ کړی ؤ. د ماز یګر د پنځو بجو په شاوخوا کې د واحدي دفتر ته ورغلم، د مسودې د څو مادو په اړه مې ورسره مشوره او تبادل نظر کاوه، چې په دې وخت کې ورته ټیلفون راغی او هغه سمدستي له دفتر نه ووت. ما ته یې یوازې دومره وویل چې د کورنیو چارو وزیر او عمومي قوماندان برید جنرال محمد طاهر په ارګ کې د کابینې په بیړنۍ غونډه کې دي، زه یې هم بللی یم. د مسودې کار مو په همدې ځای پای ته ورساو. هغه د ارګ په لوري او زه په خپل موټر کې د کور په طرف وخوځېدم. نور کله به زه د مسودې د کار له پای ته رسولو وروسته یوځل بیا په کابل ولایت کې خپل دفتر ته خامخا ورتلم ترڅو اسناد او نورې ضروري پاڼې لاسلیک کړم، خو په دغه ورځ لږ څه ستړی وم، نیغ د کور په طرف چې د دریمې کارتې په پل سرخ کې ؤ لاړم. په عمومي ډول د امنیه قوماندانۍ د نوکریوال په دفتر کې د هر منصبدار او د ادارو د مسولینو مکمل آدرس موجود وي. زه چې کور ته ورسېدم، لا مې خپل موټر نه ؤ رخصت کړی چې زما ګاونډي حاجي غلام حسین راته وویل ستاسو ټیلفون دی. د کابل د امنیې قوماندان راته په ټیلفون کې وویل چې له خپلې وسلې سره سمدستي قوماندانۍ ته حاضر شم. د امنیه قوماندانۍ ته چې ولاړم، ومې لیدل چې د قوماندانۍ په انګړ کې د پولیسو یو زیات شمېر موټرونه او د پولیسو د ماموریتونو افسران او سرتیري احضار شویدي. له وضعې نه داسې څرګنده شوه چې یو ستر او مهم کار رامخې ته شویدی. د امنیې د قوماندان دفتر ته ورغلم، ومې لیدل چې د ژاندارم او پولیسو عمومي قوماندان برید

ساتونکی غواړي چې دی او محافظین یې لکه د نورو وزیرانو په شان بې وسلې کړي او بیا د ننوتو اجازه ورکړي، خو امین په ډېره بې پروایۍ سره له خپلو وسله والو ساتونکو سره په موټر کې ارګ ته ننوځي او د انقلابي شورا د رئیس د دفتر زینو پورې ورانديځي. د امین د دې بې اعتنایۍ په اړه د مخابرې په واسطه د تره کی دفتر ته اطلاع ورکړل شوې وه. تره کی چې نه یې شوای کولای پر ته غږ غوړه، او شوره په خاموشۍ سره خپل پلان په امین باندې عملي کړي، کله چې امین له موټر نه کښته کېږي ترون چې د ارګ له داخلي وضعیت نه پوره خبر تیا لرله، په چټکۍ سره یې ځان امین ته ورساوه ترڅو امین له موضوع نه خبر کړي. په دې وخت کې له دوهم پوړ څخه په امین باندې ډزې کېږي، ترون چې د امین په مخکې ؤ په ځمکه راغورځېږي او د ګارډ ملي قوماندان سید یعقوب چې په همدې وخت کې یې ځان امین ته وررسولی ؤ هم ټپي کېږي. امین له خپلو وسله والو سړیو سره یوځای د خپل موټر په سپرلۍ له صحنې څخه تښتي او خپلې قرارګاه ته ځان رسوي. د امین د نیولو پلان د ترون په قربانۍ او د سید یعقوب په ټپي کېدو شنډ او ناکامېږي.

څرنګه چې د پوځ بنستیز واک د امین په لاس کې ؤ تره کی یې په همغه شپه په ارګ کې ونیو، فامیل یې تر تعقیب لاندې نیسي او تره کی د جمهوري ارګ په باغچه تعمیر کې بندي کوي، د دولت او حزب له مقام نه د استعفی پاڼه ورباندې په زور سره لاسلیک کوي.

زه چې د څرخي پله په زندان کې بندي وم، د شپې په ۸ بجو خبرونو د راډیو او تلویزیون له لارې دا خبر خپور شو چې مفهوم یې دا ؤ:

«نور محمد تره کی د خپلې ناروغۍ او د بدن د کمزورۍ له امله د حزبي او دولتي مشرتابه مقامونو څخه استعفی وکړه او تر درملنې لاندې ونیول شو. د افغانستان د خلق دیموکراتیک ګوند سیاسي بیورو د غړي او د بهرنیو چارو د وزیر ډاکتر شاه ولی په مشرۍ غونډه وکړه او د رایو په اتفاق یې ملګری حفیظ الله امین د د. خ. ا. د ګوند د عمومي منشي او د انقلابي شورا د رئیس په توګه وټاکه.» دا خبر د همغې شپې په ټولو خبري سرویسونو کې په تکرار سره خپور شو.

ځلورم څپرکی:

# د اگسا بوږنوونکی سازمان، د څرخی پل زندان، د مخالفینو د نیولو او وژلو لړۍ او د مصئونیت، قانونیت او عدالت شعار

## د کام استخباراتي سازمان او د حفیظ الله امین د (۱۰۱) ورځو واکمني:

**اگسا:**

د ټولې نړۍ په بېلابېلو رژیمونو کې استخباراتي او د جاسوسۍ ضد سازمانونه په بېلابېلو نومونو سره شتون لري، په ځینو هیوادونو کې دا سازمانونه د حکومت او کابینې په چوکاټ کې او په ځینو هیوادونو کې په جلا او خپلواک ډول د ځانگړو صلاحیتونو په درلودلو سره جوړ شوي دي. په ټولنیزه توگه دا سازمانونه په داخلي او خارجي برخو کې فعالیت کوي، په هره برخه کې د هیواد عالي گټې په پام کې نیسي د اساسي او فرعي قوانینو په چوکاټ کې دننه عمل کوي.

په افغانستان کې هم له پخوا څخه د صدارت عظمی په چوکاټ کې د ضبط احوالات د ریاست په نوم او بیا یې د محمد داود د دولت په مهال د مصئونیت ملي په نوم فعالیت کاوه. د ثور د ۷ مه له کودتا نه وروسته چې د شوروي اتحاد د سلاکارانو د افغاني ادارو د تشکیلاتو په جوړولو په کار پیل وکړ، د نورو رغاونو ترڅنگ یې د جاسوسۍ پرضد یو استخباراتي سازمان د «افغانستان د گټو ساتلو اداره» په نوم چې لنډ نوم یې «اگسا» دی جوړ کړ. دغې ادارې په پراخو تشکیلاتو

دې حیرانوونکې خبر ټول سیاسي بندیان په تعجب کې اچولي وو، ځکه د تلویزیون له لارې مو چې د کیوبا له سفر نه د هرکلي کوم پرتمین مراسم لیدلي وو، او ۳ ورځې وروسته د استعفې اوریدل او هغه هم د بدني کمزورۍ او ناروغۍ له امله ریښتیا هم چې د حیرانتیا او تعجب وړ وه. ما فکر کاوه چې همدا نن شپه او یا سبا ته د تره کي پلویان د امین په خلاف هرو مرو پاڅون کوي، خو هیڅ چا په ټول هیواد کې هیڅ غږ پورته نه کړ، هماغه سیاسي بیرو، هماغه مرکزي کمیټه، هماغه حزبي او اجتماعي سازمانونه چې تره کي ته یې د د. خ. ا. ګوند د روح خطاب کاوه، هغه ته یې د د. خ. ا. د ګوند ځواکمن او خلاق رهبر وایه، ټول د امین په لیکه کې ولاړ وو، او سبا ته تر شپې پورې په ټول هیواد کې د سیاسي بیرو پریکړې په تایید کې چې امین یې د حزب او دولت په مشرتابه ټاکلی ؤ لاریونونه او غونډې ترسره شوې، او په ټولو خبرونو، اخبارونو او شفاهي تبلیغاتو کې یې تره کي ته د ساده او شخصیت پرست او ځان غوښتونکي شخصیت په توګه خطاب کاوه. په ملکي او پوځي برخه کې یې امین د انقلاب د سباوون د رڼا د قوماندان او اتل په نوم یاداوه. اوولس ورځې تره کي د ارګ د باغچې په کوټه کې بندي ؤ او ټول اسناد یې وربانديې په زور سره لاسلیک کړل او د اوولسمې په شپه یې د هغه په خوله د مالوچو بالښت کېښود او په چوپه خوله یې وواژه او د هغه ژوند ته یې پای ورکړ، او په ډېر عادي ډول یې د هغه د مړینې خبر چې د همغې ورپېښې ناروغۍ له امله وه خپور کړ او پرته له رسمي تشریفاتو ځخه یې د هغه مړی د کابل په آبچکان کې خاورو ته وسپاره.

د امین په لاس د تره کي وژنه څرګندوي چې د د. خ. ا. ټول مشران د قدرت پتنګان وو، ائتلافونه او اتحادونه ټول تکتیکي او د چوکیو او مقامونو د لاس ته راوړو په خاطر وو، نه د خدمت لپاره. که د هغوی د هیواد د ترقۍ او خدمت لپاره یو بل ته لاس ورکړی وای او د هیواد د خدمت لپاره یې ګام پورته کړی وای او د هیواد د ځانګړی وضعې په اړه یې تحلیل د خپل کار اصول ګرځولی وای، نو ریښتیا به هم په پردیو نه وو پلورل شوی او زمونږ د وطن سرنوشت به له دې ورانیو او تباهیو سره نه مخ کېده.

او پراخو اختیاراتو سره په فعالیت لاس پورې کړ. د هغې مالي بودجه پټه او د مالیې وزارت له حساب څخه بهر وه، وسایل، وسایط او د هغې تخنیکي سامان آلات او تجهیزات، د شوروي اتحاد د سلاکارانو په واسطه د کې جي بي سازمان له بودجې څخه برابرېدله، پرسونل یې د تنکو، بې تجربه او کم تعلیمه ځوانانو څخه چې په شوروي اتحاد کې به د لږې مودې په کورسونو کې مسلکي زده کړه ورکول کېده او د هیواد په دننه کې به دغه سازمان په بېلابېلو څانگو کې په دنده گمارل کېدل، د هر مدیریت او ریاست په رأس کې د شوروي اتحاد د سلاکارانو په مرکز او ولایاتو کې په کار شروع کړې وه.

اگسا د یو استخباراتي او جاسوسي ضد اداري په توگه د افغاني احساساتي او بې تجربه ځوانانو په لاس په داسې بوږنوونکې او ویروونکې اداره بدله شوې وه چې هرڅوک یې له نومه وېرېدل. هرڅوک به چې د دولت او حزب د مخالف په نوم دغې اداري ته وروپېژندل شول، نو ټول مادي او معنوي ارزښتونه یې له لاسه ورکول او ان چې ژوند به یې په خطر کې غورځېد. څوک چې د بېلابېلو تورونو له امله دغې اداري ته بیول شوي وو تر ننه پورې ورک او بې درکه دي، ډېر کم او د ښه قسمت خاوندان به وروسته له ډېرو شکنجو او زورونو په کوم پټ او یا ښکاره زندان کې ژوندي موندل کېدل.

د څرخي پله او دهمزنگ زندانونه د ښکاره محبسونو له جملې څخه وو. یو زیات شمېر زیرزمینۍ او ودانۍ د پټو محبسونو په توگه د دغه سازمان په واک کې وو، لکه د اردو د څلور سوه بستریز روغتون زېرزمینۍ، د کابل بالاحصار، د مهتاب قلعه د مخابرې قطعه، د قوای مرکز پخوانۍ ودانۍ، د دفاع د وزارت پخوانۍ بارکونه او په شهر نو، کارته ۳، وزیر اکبرخان مینه، شش درک او نورو ځایونو د اگسا بېلابېل ریاستونه.

د اگسا په بېلابېلو شبکو کې د کمې زده کړې او حتی بې سواده ښځې او ځوانان په دنده گمارل شوي وو او د کابل ښار په ټولو سیمو، بازارونو، مارکیټونو، د وزارتونو په ادارو، په ښاري بسونو، په اگسا پورې اړوند ټیکسي گانو، په

کورونو کې او ان چې په خپلو فاميلونو کې استخباراتي او جاسوسي ضد فعاليتونه د همدغو شبکو په واسطه ترسره کېدل. هرې شبکې او هر کارکوونکي به چې زيات راپورونه تير کړل د اړوندې ادارې او د سلاکارانو لخوا به پالل کېدل. اګسا د خلکو لپاره يو خطرناک نوم او له خطره ډک سازمان ؤ، حتی چې د يو فاميل غړي مېړه په ښځه، پلار په زوی، خور په ورور او ګاونډی په ګاونډي بې اعتماده او بې باوره شوي وو. چا دا مېړانه نه شوه کولای چې په خپل کور کې د روانو مظالمو په اړه خوله ښکاره کړي، تردې چې د بهرنيو راډيوګانو لکه BBC، امريکا غږ، آلمان غږ، ايران او پاکستان د راډيوګانو خبرونه چا نشول اوريدلای. ددغې ادارې په سر کې د هوايي ځواک يو افسر اسدالله سروري چې يو سخت زړه او د تره کي له وفادارو ځخه ؤ په دنده ګمارل شوی ؤ. همدا رنګه په ولايتونو کې ددغه سازمان نمايندګۍ د اګسا د رياست او يا مديريت په نوم جوړې شوې وې چې لکه د مرکز په شان وېره يې په خلکو کې اچولې وه.

## د ځرخي پل لوی زندان:

د محمد داود د جمهوريت په وخت کې د کابل په جنوب ختيځ کې د ځرخي پل په پراخه ساحه کې د يو لوی عمومي محبس بنسټ د يوې بنسټيزې نقشې سره سم چې د هغې دقيقه ساحه راته نه ده معلومه ايښودل شوی و. د قوای کار د پوليسو يو مکمل يونټ له ډېرو وسايلو، تخنيکي وسايطو او ساختماني تکړه انجنيرانو سره څو کاله ددغې لويې پروژې په جوړولو بوخت وو. د فني نقشې ترمخه ددغه زندان د دېوال سور يو متر او د بنسټ يې هم د يو متر ژوروالی په سور له ځمکې لاندې په سمنټو جوړ شوی. د احاطې په څلورو خواو کې څلور برجونه چې په ټولو تخنيکي وسايلو سنبال دي، د هرو دوه برجونو ترمنځ د ترصد څو نور برجونه جوړ شوي دي. د زندان په احاطه کې دننه څلور درې پوړيز بلاکونه پاخه جوړ شوي، چې د هر بلاک په دننه کې د ډېرو د ديوال يوه احاطه جوړه شوې وه، په هر بلاک کې د څورو زرو بنديانو ځای کېدل په پام کې نيول شوی وو.

د مرکز ګرمۍ سیستم، اوبو رسولو، کانالیزسیون، اطفاییه، پخلنځی، حمام او عصري تشنابونه، سلماني خانه، په دوه پوړونو کې د بندیانو لپاره د بندیانو د جامو بدلولو اتاقونه، له خپلوانو او پایوازانو سره د بندیانو د ملاقات کوټې، دیوالي راډیو ګانې چې له یوه مرکز څخه یې پروګرامونه خپرول، د بندیانو لپاره د سپورت میدانونه، بېلابېلې صنعتي دستګاګانې، د سواد زده کولو، د افکارو د تنویر او داسې نورو کورنېو لپاره اتاقونه، داسې ساختمانونه په پام کې نیول شوي وو چې په مختلفو هیوادونو کې یې شتون درلود، خو دغه ستر او عصري زندان د سردار محمد داؤد د حکومت په دوره کې بشپړ نشو او په نامکمل ډول د مهمې ډالۍ په توګه نور محمد تره کي ته پاتې شو. د رژیم په ړنګېدو سره د دغه زندان ټول ساختماني او د ښکلا کار په ټپه ودرېد او د سیاسي بندیانو د منلو لپاره د اګسا په اختیار کې ولوېد.

ما چې یو کال د دغه ویروونکي زندان په دوهم بلاک کې تېر کړی دی، په راتلونکی کې به یې د ځینو مسایلو په برخه کې او د خپلو سترګو لیدلي حالات بیان کړم.

## زما د نیول کېدو کیسه:

لکه څنګه مې چې وویل له سمنګان ولایت څخه مې له ترور نه ځان وژغوره او کابل ته د احتیاط په بست کې راتبدیل شوم، او بیا د مالیې وزارت ته د «ګمرک ته د نارسېدلو مالونو» د دوسیې د بشپړېدو لپاره خدمتي مقرر شوم او له ګډ کمیسیون سره مې په کار پیل وکړ. په دې وظیفه خوشحاله وم، فکر مې کاوه د اګسا او د کورنیو چارو د وزارت له سترګو لرې یم. په میاشت کې یو ځل به د معاش اخیستو لپاره معتمد ته ورتلم. د معاش معتمد له پخوانیو کارکوونکو څخه وو، هیله مې ورنه وکړه چې زما ماهوار معاش په یو مناسب وخت کې ما ته د مالیې وزارت کې رارسوي، ما به د معاش د اخیستو په مهال معتمد ته یو څو روپۍ وربخښلې.

د مؤظف کمیسیون سره یوځای مې په کار پیل وکړ. د کمیسیون غړي ټول د خپلو اړوندو وزارتونو له ناراضیانو څخه وو. په لومړي ورځو کې مو یو بل ښه سره نه پېژندل، یو د بل له وېرې مو هسې نه چې کوم یو د اګسا غړی وي د سیاسي موضوعاتو او روانو چارو په اړه مو خوله نه بېرته کوله. ورو ورو څرګنده شوه چې د کمیسیون ټول غړي د تېرو رژیمونو پخواني مامورین وو او یو هم له اګسا سره تړاو نه لري. د کمیسیون له دې ترکیب څخه ټول خوښ وو چې لږ تر لږه د هغو ظلمونو په اړه چې جریان لري د زړه خواله وکړو. پنځه سوه پانیزه پرېړه دوسیه مو ولوستله، هر یوه د دوسیې د بشپړېدو په اړه یادښتونه ځان سره نوټ کړي وو، او د دغو ټولو یادښتونو له مخې یې د کار یو پلان ترتیب کړ.

ناویلې دې پاتې نه وي چې دا د دوه دولتي رژیمونو (د محمد ظاهرشاه د سلطنت د رژیم او د محمد داؤد د جمهوري رژیم) زړه دوسیه هسې له سره تېره شوې وه. په مسئولیت کې د شاملو کسانو اسناد له منځه تللي وو، له مسئولو کسانو څخه ځینې تبنتېدلي او بې درکه شوي وو او ان چې ځیني مړه شوي وو، خو په هرصورت دوسیې باید خپل قانوني او شرعي مراحل بشپړ کړي وای. د جلال آباد په ګمرک، د خوګیانیو په لویه ولسوالۍ او د تورخم په ګمرک کې یو شمېر کارونه وو چې باید ترسره شوي وای. د مالیې وزارت ته مو وړاندیز وکړ او د دغه وزارت استازي ته مو دنده ورکړه چې د سفرېې او موټر د برابرولو لپاره اقدام وکړي. د ۱۳۵۷ کال د لیندۍ په میاشت کې مو په والګا موټر سره ننګرهار ته سفر وکړ. له صاحب جان صحرایي والي او محمد عثمان مستوفي سره معرفي شوو، د انحصاراتو په کلوپ کې هستوګن شوو. هره ورځ به د جلال آباد د ګمرک او اړوند ادارو ته د دوسیې د بشپړېدو په غرض تللو او هغه څه چې د دوسیې د نواقصو په نوم یادداشت شوي وو یو په بل پسې پوره کېدل. یوځل مو د خوګیانیو ولسوالۍ ته هم سفر وکړ، په پام کې وه چې وروسته د تورخم ګمرک ته هم لاړ شو.

د کمیسیون څلور تنه غړي په دوه ګروپونو ووېشل شوو، چې یو ګروپ په جلال آباد کې خپې دندې ته دوام ورکړي او یو ګروپ په کابل کې خپلو کورونو ته د یوې

اونۍ لپاره لاړ شي. یو د بل تیلفوني آدرسونه مو له ځانه سره نوټ کړي وو ترڅو د ضرورت په وخت کې یو بل له موضوع نه خبر کړو.

د لیندۍ د میاشتې په آخر کې زمونږ د ګروپ نوبت و چې کابل ته لاړ شو. زه او د مالیې وزارت استازی کابل ته لاړو. تیلفون کوم، تیلفون کار نه کوي، فکر مې وکړ چې البته په کوم ځای کې لین شلېدلی دی، د کور له جین بکس نه مې لین تعقیب کړ، لین هم سم و. د تیلفون سیټ مې ورکشاپ ته یوړ، سیټ هم صحیح و. د تیلي کمونیکېشن د دفتر رئیس ته ورغلم، د خپل تیلفون د قطع کېدو موضوع مې ورته وویله. د رئیس د مېز په دراز کې یو لست ؤ هغه یې وکتلو، راته وېې ویل چې په دې ورځو کې د سرحداتو وزارت (پخوا د قبایلو ریاست) کارته ۳ ته نقل مکاني کړې ده او د څو کورونو د تیلفونونو لینونه چې د هغې په شاوخوا کې وو هغه د وزارت مهمو ادارو ته انتقال شوي دي. ستا تیلفون هم په دې جمله کې دی. ستا حقوق خوندي دي، په راتلونکې کې به د تیلفون یو نمبر تا ته تمدید کړو، اوس هېڅ چاره نشته. وپوهېدم چې په دې پلمه په تور لست کې شامل شوی یم. لومړی یې زما د کور تیلفوني مخابره غوڅه کړې ده، ولیدل شي چې وروسته څه پېښیږي، ځکه زما د ګاونډي د کور تیلفون چې کوم رسمي سړی نه وو او دوکاندار ؤ نه ؤ قطع شوی او فعال ؤ.

د غرمې د ۱۲ بجو په شاوخوا کې کورته راغلم، د کوټې په خوله کې د پولیسو یو افسر چې د یوې ناکامې مینې (عشق) له امله ناهیلۍ سره مخ شوی و او د غیر حاضرۍ دوسیه یې لرله او د همدې دوسیې په وجه له څو کلنیو ترفیعاتو څخه پاتې شوی ؤ، نیک محمد زما په انتظار ولاړ دی. زه یې چې ولیدم په خندا یې راته وویل: «زه درې ځل کور ته راغلم، راته وویل چې نشته د تیلفون د خرابوالی له امله د مخابراتو وزارت ته تللی دی، د مخابراتو وزارت ته په تا پسې درغلم او هرڅومره مې چې ولټولې، پیدا مې نه کړای شوې، بیا کور ته راغلم، بیا هم په کور کې نه وې، مجبوراً د کورنیو چارو د وزارت پېژندوال ته ورغلم او ورته مې وویل چې د کور تیلفون یې خراب شوی، د مخابراتو وزارت ته تللی دوباره نه دی راغلی، بنا یې د

غرمې ډوډۍ ته کور ته راشي. پېژندوال راته وویل چې د غرمې په وخت کې یې کور ته ورشه او ورته ووایه چې د بلخ ولایت د امنیې د قوماندان په حیث مقرر شوی یې، په عاجل ډول د عمومي قوماندان ترون څنګ ته راشه. » نېک محمد ساده سړی ؤ د پېژندوال په دې خبرو یې باور کړی ؤ، په دې نیت چې له ما سره یوځای د بلخ ولایت ته لاړ شي، د غیر حاضرۍ دوسیه به حل او فصل کړي د تیرو کلونو خپل ترفیعات به واخلي، له همدې امله یې درې ځل کوښښ کړی ؤ چې ما پیدا کړي. چې څنګه یې زه ولیدم د نوی وظیفې مبارکي یې راکړه او ټوله کیسه یې راته تېره کړه. زه چې د کور د ټیلفون په قطع کېدو شکمن شوی وم، وپوهېدم چې خبره خرابه ده. نېک محمد ته مې وویل چې اوس غرمه او د ډوډۍ وخت دی، کور ته به لاړ شو، دواړه به ډوډۍ وخورو بیا به لاړ شو، خو نېک محمد دومره ټینګار کاوه او ویل یې چې عمومي قوماندان په خپل دفتر کې ستا انتظار کوي او ته یې عاجل غوښتی یې، څه پروا کوي د غرمې ډوډۍ به په وزارت کې وخورو. د ساده مزاجه نېک محمد په اسرار او ټینګار هم پوهېدم چې د پېژندوال د تأکید له امله ؤ، یوځل خو مې هوډ وکړ چې کور ته ننوځم او د کور له جنوبي دروازې نه چې زما د زوی د کور په طرف خلاصه وه وتښتم، په دې وخت کې مې په نېک محمد بېچاره زړه وسو چې د مسئلې له حقیقت نه خبر نه ؤ او پېژندوال ته یې په کور کې زما د موجودیت خبر ورکړی ؤ، نو که زه وتښتم، نېک محمد په دې تور چې ما سره پېژندګلوی لري ښایي زما د تېښتې زمینه یې برابره کړې وي، په وظیفه کې د خیانت په جرم ډېر په تکلیف کېږي، او ان چې د هغه د مرګ خطر مې په ذهن کې وګرځېد، نو تصمیم مې ونیو هرڅه چې دي په ما راتلونکې دي، زما په وجه دا بېګناه ساده سړی باید بندي او یا ونه وژل شي. یوځل کور ته ننوتم، زما ښځې چې له نېک محمد سره یې زما ټولې خبرې اوریدلې وې، ورته مې وویل چې: «زه وزارت ته ځم، که نن شپه بېرته راستون نه شوم نو زما وسله او محرم حزبي اسناد تر خاورو لاندې ښخ کړئ او په اګسا او د هغې په اړوندو ځانګو کې زما لټون وکړئ. » په داسې حال کې چې یونیفورم مې په تن ؤ، له ښځې سره مې خدای پاماني وکړه، له نېک محمد سره د کورنیو چارو

وزارت ته د عمومي قوماندان دفتر ته ورغلم. نېک محمد ته مې وویل: «ستا دنده نور پای ته ورسېده، زه ترون ته ورځم.» هغه له مانه بېل شو او په خپله مخه لاړ. زه د ترون دفتر ته راغلم، زه یې د کتنې لپاره ونه منلم او امر یې وکړ چې د پېژندوالۍ سرپرست ښاغلي آغا ګل اندړ ځنګ ته ورشم. ګل محمد اندړ د پولیسو په اکادمۍ کې زما همدوره افسر ؤ، ډېر مخ ماتی او حوصله من شخص ؤ، که څه هم په عاجل ډول زما د احضار له موضوع څخه خبر ؤ خو د تېرې آشنایۍ له کبله یې ځان ناګاره ونیو، ویل یې: «ښایي د هغو بشپړو معلوماتو له امله چې د کندز او سمنګان ولایتونو په اړه یې لرئ تاسو ته یې دلته د راتګ زحمت درکړی وي، ښایي د استخباراتو مدیریت ستاسو نظر او معلوماتو ته اړتیا لرلی وي.» ما چې د ترون له دفتر څخه په بشپړه توګه درک کړی وه چې موضوع څه ده، اندړ ته مې وویل: «دا ډېره بې مناسبه ده چې ما له مسلکي یونیفورم سره راغواړئ او د پوښتنو لپاره مې استخباراتو ته سپارئ.» رحیم چوچه د استخباراتو مرستیال او حبیب الله کروړ د استخباراتو مدیر ؤ، دا دواړه د تېرو رژیمونو د افسرانو له جملې څخه وو. د ثور د کودتا نه مخکې نه حزبیان وو او نه خلقیان، د قدرت له اربابانو سره د کوم شخصي ارتباط او پېژندګلوی له مخې په دې پوستونو کې تاکل شوي وو. رحیم چوچه پخوا د محمد داود په رژیم کې په همدې چوکۍ د محمد عیسی پغمانی تر لاس لاندې چې د خلیفه نورعلي زوی ؤ او د قدیر نورستاني له خپلوانو څخه ؤ او یو مقتدر مدیر ؤ کار کاوه. رحیم چوچه هغه شخص ؤ چې د حفیظ الله امین د کور د تالاشۍ او د هغه د نیولو په وخت یې د هغه کور د لار پېژندونکي په حیث له ما سره کار کړی ؤ. یو ځیرک او مرموز سړی ؤ، په دې کې شک نشته چې په تېر وخت کې به یې د د. خ. ا. ګوند له یوه یا دوه تنو مشرانو سره اړیکې درلودلې خو په څرګنده د هغه وخت د استخباراتو په دستګاه کې د ښې او کیڼ دواړو اپوزیسیوني ډلو سرسخت مخالف ؤ. ډېر مکار او ماهر سړی ؤ. هغه کولای شول چې په یوه وخت کې دوه مخالف رول ادا کړي، او د واکمن رژیم د باور پیدا کولو لپاره یې ځانګړې مهارت درلود. په راتلونکې کې یې هم د پرچمیانو او خلقیانو د واکمنۍ د تغییر په موده کې په همغه پخوانۍ دریځ او باور سره په بېلابېلو پوستونو کار وکړ.

جنرال محمد ظاهر نعمانی، غلام صدیق واحدی، د مرکزي جنايي رئيس غلام فاروق يعقوبی، د څارنوالی له څو تنو مساعدينو سره او د امنيې قوماندان امير گل سره په کار او خبرو بوخت دي.

د يو شمېر ادارو مسئولين لکه د ترافيکو رئيس حفيظ الله، د کابل د ترافيکو مدير بريالی، محمد علی احمديار محمد عيسی مدير، د استخباراتو مرستيال رحيم چوچه، اسدالله احمدزی، د پوليسو د اکادمۍ قوماندان او داسې نور هم د امنيې د قوماندان په دفتر کې موجود وو. زه هم له رسم تعظيم ادا کولو وروسته د دوی ترڅنگ په چوکۍ کښېناستم. څو دقيقې وروسته لومړنی گروپ د ترافيکو د رئيس حفيظ تر قوماندانۍ لاندې د کار د پلان او لارښوونې په اړه له يوې ليکل شوې پاڼې سره له دفتر نه ووتل او د خپلې دندې په لور وخوځېدل. په همدې ترتيب دوهم، دريم، څلورم، پنځم، شپږم، اووم او اتم گروپ د کار د پلان له يوې يوې پاڼې او ليکل شوی يادښت سره بيل بيل د خپلو دندو په لوري وخوځېدل. زه هم د اتم گروپ په مشرۍ د ډاکتر شاه ولی د نيولو او د هغه د کور د تلاشۍ لپاره گمارل شوی وم. له يو شمېر افسرانو، سرتېرو او نقليه وسايطو سره چې په پاڼه کې يې شمېر تعين شوی ؤ په خپله وظيفې پسې روان شوم. په هر گروپ کې د څارنوالۍ يو استازی او د اړوند سمت د پوليسو مامور هم ټاکل شوی ؤ. د عمليتو د گروپونو آمرانو ته د ميکرو کيسټ يو يو ټايپ ريکارډونه هم ويشل شوی وو. ترڅو د نيولو په اړه ټول جريانات په فيته کې ثبت شي.

د يادښت په پاڼه کې د اساسي قانون له احکامو څخه د نيول کېدونکی شخص د مخالفت کولو په اړه د دولت تصميم او د لوی څارنوال امر ذکر شوی و او د گرفتاری د گروپ د کړنې په طرز او طريقه ډېر فشار اچول شوی ؤ.

## د ډاکتر شاه ولی نيول:

ډاکتر شاه ولی د بکلوريا په دوره کې په غازي ليسه کې زما همصنفی ؤ. اصلاً د کابل د ده خدايداد ؤ، پلار او تره يې د کابل د ښار له ډېرو پخوانيو سوداگرو

ما څو دقیقې له اندړ سره خبرې وکړې او د همدې ودانۍ په دوهم پوړ کې د استخباراتو مدیریت ته ورغلم. د تعامل سره سم د نوکریوال په کوټه کښې کښېناستم، په حقیقت کې له همدې شیبې څخه زه نیول شوی او بندي وم.

## د استخباراتو ۱۵ نمبر خونه:

### د میوندوال د شهادت پېښه او د خرم د قاتل معلم مرجان موضوع:

یو ساعت د نوکریوال په خونه کې ناست وم او بیا د رحیم چوچه په امر ۱۵ نمبر خونې ته ولېږدول شوم. د استخباراتو ۱۵ نمبر خونه دوه دیوالونه په تخنیکي وسایلو سنبال وو، یو دیوال یې په خښتو او سمنټو پوخ جوړ شوی وو، دوهم دیوال یې لرګین، سوری سوری په روغني رنګ سره په زړه پورې ډیزاین سره جوړ شوی ؤ چې د دواړو دیوالونو ترمنځ په تشه کې د تخنیکي وسایطو لینونه (د غږ ثبت، عکاسي او نور) غزول شوي وو. په ورسره څنګ ته خونه کې تخنیکي پرسونل له وسایلو او ماشین آلاتو سره شتون درلود. د مستنطق مېز او چوکۍ په یوه ټاکلې فاصلې سره په ځمکه کې ټینګې اېښودل شوي وې. له دې امله چې تورن اکثره وخت په دې خونه کې له مستنطق (پلټونکي) سره څوڅو ساعته بوخت وي، په دې ونه توانېږي چې له دې چوکۍ څخه د پلټونکي پرضد د تېري په توګه کار واخلي. د پلټونکي یا مستنطق د مېز په جعبه کې د بېلابېلو تخنیکي وسایلو بټنې (تکمې) موجودې وې، بې له دې چې تورن متوجه شي ټولې خبرې او حرکتونه یې په څنګ ته خونه کې ثبتېږي. ما د دې خونې په اړه بشپړ معلومات درلودل. د محمد داؤد د حکومت په وخت کې د پلان د وزیر علی احمد خرم قاتل معلم مرجان چې په همدې خونه کې د شفاهي پلټنو لپاره ډېره موده پروت ؤ، زه په خپله په هغه کمیسیون کې شامل وم. همدا رنګه له محمد هاشم میوندوال څخه په همدې خونه کې پلټنې ترسره شوې وې. د خونې دروازه، کړکۍ او روشندانونه په داسې ترتیب له اسفنج او څرمنې څخه جوړ او پوښل شوي وو چې له هغې څخه له خونې نه بهر غږ نه خپرېده.

د مرجان قاتل او د پخواني صدراعظم محمد هاشم میوندوال یادونه په منځ

کې راغله، غوره گڼم د دوی په اړه هغه معلومات چې لرم یې په لنډ ډول وړاندې کړم. مرجان نومې ښوونکی د ننگرهار د ښېوې ولسوالۍ او سیدونکی او د کندز ولایت د حضرت امام ولسوالۍ په متځنی ښوونځی کې د ښوونکی په حیث دنده ترسره کوله. لکه چې د پلټنو په مهال یې ویل چې له یو له ښنستیپالو اسلامي تنظیمونو سره تړاو لري او د یو له مخې پلان سره سم د پلان د وزیر علی احمد خرم د وژلو لپاره دنده ورسپارل شوې وه. د ورځې په لسو بجو په دې پلمه چې د ساینس او ریاضي ښوونکی دی د برېښنا په اړه یې کوم فارمول کشف کړی دی او غواړي چې د پلان له وزیر سره خپل فارمول طرحه کړي، د نورو مراجعینو په شان، په داسې حال کې چې تومانچه یې په جیب کې وه د پلان وزارت ته ننوځي او د وزیر د سکرتریت دفتر ته ځي. په دې وخت کې وزیر د جاپان له سفیر سره ملاقات لري او له هغه سره په خبرو بوخت دی. معمول داسې ؤ چې سفیران به د ترافیکو د افسر په لارښوونه او امنیت سره وزارتونو ته له وزیرانو سره د ملاقات لپاره تلل. د غلام سخي په نوم د ترافیکو یو افسر د وزیر تر دفتره پورې د جاپان د سفیر ملگرتیا کړې وه، د سکرتریت په دفتر کې ناست ؤ چې له وزیر سره له ملاقات نه وروسته ورسره د جاپان تر سفارت پورې ملگرتیا وکړي.

کله چې معلم مرجان سکرتریت ته راځي، غواړي چې له وزیر سره ملاقات وکړي، د وزیر سکرتره چې یوه ښځه وه ورته وایي انتظار وکړئ ترڅو وزیر د جاپان له سفیر سره تر ملاقات او خبرو نه فارغ شي، خو معلم مرجان د یو ضروري او عاجل کار په ښودلو له سکرترې نه په تکرار سره غوښتنه کوي چې د وزیر خونې ته ورننوځي، ښو سکرتره مخنیوي کوي. د سکرترې او مرجان په منځ کې شور او زوگ پورته کېږي، سکرتره اړ کېږي چې له موضوع نه وزیر خبر کړي او د ناوړه خبرو چې د یوه نارینه معلم او ښځینه سکرترې ترمنځ د شور ماشور په مهال له چوکاټ او نزاکت نه بهر الفاظ یې ترمنځ تبادله شوې شکایت وکړي. سکرتره د وزیر خونې ته ورننوځي او لا شونډې یې د خبرو لپاره نه وې پرانیستې چې معلم مرجان په هغې پسې متصل د وزیر خونې ته تمانچه په لاس ورننوځي، وزیر تهدیدوي او د خونې

فضا ته تغییر ورکوي. د جاپان سفیر چې دا وضع ګوري سمدستي د وزیر له خونې وځي او په ډېره چټکۍ سره ځان خپل موټر ته رسوي او په خپل کار پسې ځي. سکرتره چې د مرجان په لاس کې وسلهویني په پټه خوله د وزیر له خونې وځي، مرجان د تومانچې په تهدید سره په داسې حال کې چې د وزیر لاسونه پورته نیولي دي د مرجان په هدایت له خونې راوځي او د دوهم پوړ دهلیز ته چې د وزیر دفتر هم په دوهم پوړ کې ؤ راوستل کېږي. وزیر مخکې او مرجان ورپسې لومړي پوړ ته راکښته کېږي. وزیر پرته له کوم مقاومت نه هر امر چې ورته مرجان کوي په همغه ترتیب او استقامت حرکت کوي. د کار له دفتر نه د موټرو تر تم ځایه پورې وزیر د وسلې په تهدید راوستل شوی ؤ او ټولو مامورینو او کارکوونکو دا حالت په سترګو لیدلو. کله چې وزیر د خپل موټر څنګ ته راوستل کېږي، مرجان غوښتل چې وزیر له موټر سره وتښتوي، په دې وخت کې د وزیر موټر چلوونکی نه ؤ، مرجان فکر کوي چې په کار کې ځنډ به د پولیسو د رارسېدو سبب شي، وزیر د تومانچې په ډزو په ځمکه راغورځوي او تښتي. د رکشا په سپرلۍ د خیابان له بازار نه میوند جادې او له هغه ځایه د سید نور محمدشاه مینې ته هغه کور ته چې ددوی پټه قرارګاه یا اډه په کې وه ځي. یو میل چره ییزه ټوپک له ځانه سره اخلي د قوالانو د غونډۍ سر ته خېژي او په یوه ژور ځای کې پټېږي تر دې چې د کابل پولیس هغه له خپلې وسلې سره نیسي او قوماندانۍ ته یې راولي.

علي احمد خرم چې د کوما په حال کې د جمهوریت روغتون ته لېږدول شوی ؤ په حق رسېږي. معلم مرجان د جنایي مرکزي ریاست د ودانۍ په دوهم منزل کې چې د استخباراتو مدیریت هم هلته ؤ په ۱۵ نمبر خونه کې چې مخکې ورته اشاره وشوه د څارنوالۍ او پولیسو ګډ کمیسیون تر پلټنو لاندې راوستل کېږي. په پای کې په خپل جرم اعتراف کوي، د ترهګرۍ پلان افشاء کوي او د خپل جرم په کار کې ټول شریکان پولیسو ته ورپېژني. د هغه د پلټنو کار پای ته رسېدلی ؤ، فیتې او د اعتراف کولو اقرار یې پرته له دې چې مرجان ورباندې وپوهېږي هرڅه ثبت شوی وو او ډېرې پاڼې چې په فیتو کې ثبت شوی وې په خپل قلم لیکلي او لاسلیک کړي

وې. صدیق واحدي ورد ګ چې د پلټنو د کميسيون غړی ؤ او له مرجان سره يې ځانګړې پوليسي چلن کاوه، مرجان چې د چرسو عادي ؤ هره شپه يې ورته يوه پوړۍ چرس او يو ډبی سګرټ مقرر کړی وو.

په وروستۍ شپه چې مؤظف کميسيون د ۱۲ بجو په شاوخوا کې خپل کار بشپړ کړ، د توضيحي پوښتنو دوه پاڼې يې مرجان ته وسپارلې ترڅو هغه جوابونه په مفصله توګه چې شفاهي يې ويلي دي او په فيتو کې ثبت شوي دي وليکي. مؤظف کميسيون ځي او مرجان له خپل يو تن ساتونکي جګتورن محمد ظاهر کندهاري سره په ۱۵ نمبر خونه کې پاتې کيږي ترڅو جوابونه مکمل کړي. ما د څنګ په يوه خونه کې استراحت کړی ؤ ترڅو د مرجان وروستي جوابونه واخلم او په دوسيه کې يې شامل کړم. مرجان د پخوا په شان له نيمې شپې وروسته چای څښلې، نن شپه يې هم ورته د شين چای يو چای بر له مينو چاکليټو سره راوړی ؤ. ساتونکي يې د دې لپاره چې ويده نشي په خونه کې دننه په قدم وهلو پيل کړی ؤ. نيمه شپه وه، خاموشه خاموشي وه، مرجان د چای څښلو په مبز سره د شا لخوا په جګتورن محمد ظاهر باندې بريد وکړ او په يو سخت ګوزار يې هغه په ځمکه راوغورځاوه، غوښتل يې چې تومانچه ورڅخه واخلي او وتښتي. کله چې محمد ظاهر په سر ګوزار خوري، يوه چيغه کوي او په ځمکه لوېږي، سر يې ماتيږي او وينې پرې رابهيږي، خو په همدې حال کې يې هم تومانچه په لاس کې ټينګه نيولې وه. مرجان هڅه کوله چې تومانچه ورڅخه واخلي، زه د چيغې او په ځمکه د هغه د راغورځېدو په غږ راويښ شوم او دهليز ته راووتم، ګورم چې مرجان له جګتورن سره د تومانچې په اخيستلو کې ښکېل دی. خپله تومانچه مې راوايستله، مرجان منځ تهديد کړ او د تومانچې په ميل سره مې د مرجان په مخ يو څو ګوزارونه وکړل او جګتورن مې ورڅخه خلاص کړ. په دې وخت کې جنايي نوکريوال راغی، مرجان يې ولچک او کوټه قلفي کړ. جګتورن چې ټپي شوی ؤ، روغتون ته ولېږدول شو، د مرجان وروستنۍ هڅه چې غوښتل يې وتښتي ناکامه شوه او د ځانګړې پوځي محکمې لخوا په حبس دوام محکوم او بندي شو.

کله چې د ۱۳۵۷ کال د مرغومي په میاشت کې د څرخي پله په زندان کې بندي شوم، معلم مرجان مې په دوهم بلاک کې ولید. په غوسه او منډه زما خواته راغی او ویې ویل: «اخر زمونږ سره یوځای شوې.» ما یوه شپه د تومانچې په میل وهلی و او جګتورن مې ورڅخه خلاص کړی ؤ او د یوې ناوړه پېښې مخه مې نیولې وه، فکر مې وکړ چې مرجان د غچ اخیستنې په احساس سره له ما سره دښمني کوي، خو داسې نه وه. هغه خوارکی خپل اعصاب له لاسه ورکړی او لیونی شوی ؤ. ما ته یې چې کله لاس راکړ نو کله به یې خندل او کله به په ژړا شو، کله به یې لمر ته کتل او خبرې به یې ورسره کولې، د عقل او بدن توازن یې له لاسه ورکړی ؤ. یوه شیبه به یې حرکتونه له نورمال حالت نه وتل، بله شیبه به یې د سم انسان په شان خبرې کولې. یو وخت چې نورمال و د خپلې وروستۍ شپې د تحقیقاتو خاطره یې چې غوښتل یې د جګتورن تومانچه تر لاسه کړي او وتښتي او زه چې په وخت سره ورورسېدلی وم، یاده کړه او ما چې د تومانچې په میل وهلی و او په دواړو مخونو یې داغونه پاتې وو راوښودل، زما په غاړه کې یې لاسونه واچول په زوره زوره یې وخندل او لاړ. د ۱۳۵۸ کال د مرغومې د ۱۵ مې نېټې په عمومي بخښنه کې له زندان نه ووت.

خو د محمد هاشم میوندوال په اړه مو چې یادونه وکړه، د جنایي ۱۵ نمبر خونې ته د پلټنو لپاره راکش شوی ؤ، د هغه تراژیدي مې داسې په یاد ده چې د ځان وژنې په پلمه یې د هغه مړی د دهمزنګ له زندان نه رابهر کړ او د جمهوریت په ورځپاڼه کې یې د هغه د ځان وژنې واقعه د تصویر او اسنادو سره چې له وړاندې نه یې ور ته جوړه کړې وو خپره کړه.

محمد هاشم میوندوال زمونږ د هیواد د نامتو او پیاوړو سیاستوالو او لیکوالو څخه ؤ، د مساوات په نوم د سوسیال دیموکرات ګوند مشري یې کوله، د لړم د ۳ مې نېټې له پېښې نه وروسته په پارلمان کې د باور د رایو په لاس ته راوړلو سره یې د هیواد د صدراعظم په توګه دنده ترسره کوله. میوندوال د لویدیځ ماډل دیموکراسۍ پلوي کوله، د کمونیزم له ایډیالوژۍ سره یې نه پخلاکېدونکی مخالفت درلود. دا مخالفت د هغه په مقالو او ویناو کې ځلېده. له دې نه هم څوک سترګې نشي پټولی

چې محمد داود د خلقیانو او پرچمیانو د کوښښونو په ګډون د کودتا اقدام وکړ. د واکمنۍ په لومړیو کې د «افغانستان خلکو ته خطاب» په نوم په پروګرام کې یې د ملي مسئلې په اړه د کورنۍ او بهرنۍ سیاست، اجتماعي وضعې، زراعت، د ښځو د حقوقو، زده کړې او تحصیلاتو او د اقتصادي پلانونو په برخه کې په بشپړ ډول د د. خ. ا. ګوند کمونیستي نظریات منعکس کول. په کابینه کې یې پرچمیانو او په پوځ کې خلقیانو ځای نیولی ؤ. فیض محمد د کورنیو چارو وزیر، د ببرک کارمل د ترور زوی جیلاني باختري د زراعت وزیر، عبدالقادر د دافع هوا قوماندان، ضیاء د ګارډ قوماندان، حسن شرق د صدارت مرستیال، یعقوب کمک د لوی څارنوال مرستیال، عبدالهادي مکمل د بهرنیو چارو د وزارت معین. شاه محمد دوست او په سلګونو نورو د د. خ. ا. د ګوند ولسوالان او اشخاص په مرکز او ولایاتو کې په دولتي ادارو کې په دندو ګمارل شوي وو.

محمد هاشم میوندوال د دولت پرضد د کودتا په تور ونیول شو، یو زیات لوړپوړي افسران چې کمونیستان وو په کودتا کې د لاس لرلو په تور ونیول شول، بندیان شول او یو شمېر یې په اعدام محکوم شول.

میوندوال د ۱۵ نمبر جادوګرې خونې ته لکه څنګه یې چې مخکې په اړه خبرې وشوې راوړل شو او د نظریاتي مخالفینو تر پلټنو لاندې راغی. میوندوال یوه ملي او نړیواله پېژندل شوې څېره وه، د شوروي اتحاد سلاکاران هم د هغه مخالف وو.

سردار محمد داود خان هم له هغه شمېر پیاوړو اشخاصو او د شاهي اردو له جنرالانو سره چې دده په کور د لس کلنې مودې پر مهال له شاه سره وو او له ده سره یې تماس نه درلود، د واکمنۍ په وخت یې هغوی ته په ورین تندي نه کتل او شاوخوا یې بې عقله او بې فهمو کودتاچیانو نیولې وه.

میوندوال هماغه شخصیت ؤ چې د محمد داؤد خان له نظریاتو سره یې چندان توافق نه درلود، کله یې چې مخالفینو په ده باندې د کودتا تور ولګاو، نو داؤد خان له ټولو نه زیات ورسره له غوسې ډک چلن وکړ. هیله من ؤ د خپل تازه رامنځ ته شوي جمهوریت د هوښیارۍ او بېدارۍ لپاره د کودتا اعترافونه د خپرونو او ډله

ییزو رسنیو له لارې اعلان کړي، د پلټنو مؤظفین د میوندوال په اړه د دولت د رئیس له نظریاتو څخه خبر وو، په ډېره بې رحمۍ سره یې هغه تر زوروني او شکنجې لاندې نیولی ؤ، د هغه د ځان وژنې د خبر له خپرېدو نه وروسته داسې آوازې وې چې هغه د پلټنو په شپه له سخت وهلو ټکولو، شکنجه کولو او برقي شارتونو په ورکولو وژل شوی ؤ. چارواکو د دغې موضوع د پټ ساتلو لپاره د هغه جسد د دهمزنګ د زندان په کوټه کې د هغه له نګتایي او کمربند چوکۍ او د کوټې د کړکۍ له دستک څخه په استفاده کولو د هغه غرغره کول وځلول او یو لیک یې هم د هغه د رسم الخط په شان د هغه په کوټه کې ترتیب کړی ؤ، چې ګنې هغه په خپله د افغانستان د خلکو د خپل وجداني شرم او خجالت څخه او له دې امله چې د دولت په مقابل کې یې ناکامې کودتا ته لاس غزولی دی ځان وژلی دی. لکه څرنګه یې چې د هغه له وژلو څخه د هغه ځان وژنه جوړه کړې وه، په همغه ډول دغه موضوع پرته له کوم غږ پورته کېدو خاموشه کړای شوه، خو د بصیرت د خاوندانو په زړونو کې به د دغه ډول سیاسي شخصیتونو د ضایع کولو ترخه خاطره د تل لپاره ژوندۍ وي. د هغه دغه غمجنه تراژیدي یې داسې په یاد ده چې د انتحار په نوم یې د هغه مړی د دهمزنګ له زندان څخه بهر کړ او د هغه د انتحار کیسه د هغو اسنادو له فوټوکاپي سره چې ورته جوړ کړي یې وو د جمهوریت په ورځپاڼه کې خپره شوې وه.

د شپې تر ۸ بجو پورې د کوټه قلفۍ په همدې خونه کې وم، د شپې ډوډۍ او چای یې راته راوړل، له ډوډۍ خوړلو وروسته چې کله له وسله وال ساتونکي سره تشناب ته تلم، د پولیسو افسران فاروق میاخیل او عبدالجمیل نورستاني مې ولیدل چې د خپلو وسله والو ساتونکو سره یو تشناب ته روان او بل له تشناب نه راروان. د خبرو کولو حق مو نه درلود، نورستاني د لاس په اشاره د شونډو په سر راته څه وویل چې ما د هغه له اشارې څخه له ځانه سره دوه ډوله تعبیر اخیستی ؤ، لومړی دا چې د هغه پېژندنې په اړه څه ونه وایم او انکار ورڅخه وکړم، دویم دا چې د هر ډول تور په اړه چې لګوي یې پته خوله واوسم. د شپې د ۹ بجو په شاوخوا کې یې زه مخامخ خونې ته بوتلم. څلور تنه پلټونکي چې ملکي جامې یې په تن وې ناست وو، د

سگرټو لوگیو د خونې هوا بیخي خچنه کړې وه، مات او چټل څیزونه په ځمکه پراته وو، د کوټې ځمکه داسې وه لکه چې آبپاشي شوې وي او مرطوبه وه، د خونې په کونج کې یو آبدان او دوه گیلاسونه لیدل کېدل، د هغوی د یوه مخې ته د صحرایي ټیلفون یو پایه ماشین د دوه فولادي لینونو سره د ۲-۳ مترو په اندازه پراته وو. کله چې کوټې ته ننوتم، سلام مې وکړ د دنگې ونې یو تور مخې سړي چې غټ غټ بریتونه یې وو او د آمریت د مېز ترشا ناست ؤ، په قهر او غوسه یې وویل: «ای خاینه! رسم تعظیم دې ولې ونکړ؟» ومې ویل: «تاسو ټول په ملکي لباس کې یئ، نپوهېږم چې د پوځي افسرانو په خدمت کې ولاړ یم، پوځي رسم تعظیم د ځان نه پورته پوځي آمرانو ته کېږي، زه پوه نشوم بخښنه وکړئ، په قهرجن غږ یې چغه کړه او ویې ویل گونگ شه!»

حیران شوم چې دا څه حالت دی، په شرابو د مستو لیونو په لاس کې کېوتی یم، عاقبت ذې په خیروي، د ټیلفون لورې ته یې اشاره وکړه او ویې ویل: «دا پېژنې؟» ومې ویل: «هو! دا صحرایي ټیلفون دی.» ویل: «نه، دا صحرایي ټیلفون نه دی.» ویې خندل او ویې ویل: «دا قایل شاه دی قایل شاه.» هغه بل یې راته وویل له پښو نه دې جرابې اوباسه. لوڅې پښې یې په مخکې ولاړ وم. یو بل یې نیمه تخته سپین کاغذ او یو خودکار قلم راکړ ویل: «کښېنه، لومړی خپل نوم او بشپړ شهرت ولیکه.» خپل مکمل شهرت مې ولیکه، لومړنی سړی راته وویل: «وخت له سره دی، ته او ستا ملگري د جرم له اسنادو سره نیول شوي یئ. انقلابي دولت ویښ دی، خاینان او توطیه جوړوونکي په هره جامه کې چې وي نیسي یې، ستاسو د توطیې مشر هم نیول شوی دی، ټولو په خپل جرم اقرار او اعتراف کړی دی، تا ته هم توصیه کوم چې پرته له بحث او جنجال، زورېدو او شکنجه کولو اعتراف وکړې، ستا انکار کومه گټه نلري، ستاسو ټولو ملگرو اعتراف کړی دی، پغیر له دې په وهلو او ټکولو او شکنجې مجبور یې چې اعتراف وکړې، مونږ ستاسو د جرم د ثبوت ټول اسناد په لاس لرو، ته اختیار لرې چې بې له شکنجې او په عذاب کېدو اقرار کوې او یا د ټولو شکنجو او عذابونو په منلو اعتراف کوې!»

ددې جملو په اورېدو سره مې عقل له سره والوت چې دا څه اورم. زه چې کومه گناه نلرم څه ووايم. د جميل نورستاني هغه اشاره چې د تشناب په لاره کې يې راته کړې وه راياده شوه، ومې ويل: «په داسې حال کې چې د جرم د ثبوت مدارک او اسناد ستاسو په لاس کې دي ښه به دا وي چې راښکاره يې کړئ، بيا به نو زما انکار رېښتيا هم چې بې گټې وي.» ويې ويل: «د جرم اثبات او مدرک څه شی دی؟» ومې ويل: «تاسو ته بهتر معلوم دی چې اعتراف شهود (ذاتي او مادي) د اثبات قوي مدرک دی، ليکلی سند، د غږ ثبت، تصوير، د گوتې نښان، د پښې پل او داسې نور د جرم د اثبات لپاره قراين او دلايل دي، که زما په برخه کې داسې مدارک او اسناد موجود وي (په زړه کې مې ويل چې نشته) مهرباني وکړئ راته ويې ښايئ، بيا به زما د انکار موضوع بې گټې وي، تاسو په خلاص مټ زما د مسئوليت په اړه نظر ورکړئ، په داسې حال کې چې زه له هېڅ شی نه خبر نه يم، په وارد شوي تور نه پوهېږم چې څه ډول دي نو تاسو ته څه بيان وکړم.» زما خبرې يې غوڅې کړې په غضبناک آواز يې وويل: «ته خاين د يو مهم سياسي جرم د تورن په حيث مونږ ته راغلی يې، ددې پرځای چې په خپل جرم اعتراف وکړې او مونږ ته سيمينار جوړوې، غواړې مونږ تر خپلې اغيزې لاندې راولې؟» يو بل ته يې وويل دا خاين د پخوانيو قوماندانانو او افسرانو له جملې څخه دی، په خبرو اترو غواړي مونږ تېرباسي او وخت ضايع کړي، غوره به وي چې قايل شاه ورسره خبرې وکړي.

دوه فولادي لينونه يې په دوه غټو گوتو سره وتړل، يوه د لنډ سور د تختې توته يې زما له خولې او غاړې نه راتاو کړه، د توتې دواړه سرونه يې د شاخوا ته تاو کړل، يو قوي بدنه سرتيری هغه ټينگ ونيول، خپل دواړه زنگنونه يې زما ملا ته د شا له خوا نه ټمبه کړل، چې په دې ترتيب سره زما پښې له برقي لين سره وصل شوې، خوله مې په توته تړل شوې وه، او د عسکر زنگنونه مې شا ته داسې اړم شوي وو چې هېڅ حرکت مې نشو کولای، يوازې سترگې او پوزه مې خلاصه وه چې وويني او سا واخلم. مخکې له دې چې د ماشين انډل ته حرکت ورکړي راته يې وويل: «په خپله خوښه دې اعتراف ونکړ او س يو چانس لرې، کله چې د قايل شاه مزه وڅکې او غوښتل دې

چې په خپل جرم اعتراف وکړي، نو څرنگه چې دې خوله تړل شوې ده نو کولای شې چې د یوه لاس په پورته کولو سره مونږ ته اشاره راکړې، چې کله ته اعتراف کوې نو بیا به مونږ برقي جریان بند کړو، کاغذ او قلم ستا په واک کې دي، کولای شې چې خپل بشپړ اعتراف ولیکې. » ما د هغوی وروستنۍ مرگونی توصیه واورېده او هغې ته مې د جمیل نورستاني له اشارې سره ارتباط ورکاوه، په دې شېبه کې د گاونډیو اتاقونو څخه د داسې ویروونکو عذابونو او شکنجو آوازونه مې غوږونو ته رارسېدل، هرو مرو ما هم باید دا عذابونه تېر کړي وای، بله هېڅ چاره مې نه لرله، پرته له کوم جرم څخه اعتراف کول چې ترشا یې حتمي مرگ ؤ، دا زجر او شکنجه مې باید زغملي وای. مؤظف نفر ته یې اشاره وکړه چې د ماشین انډل ته حرکت ورکړي، د انډل په حرکت سره مې د برېښنا جریان په بدن کې خپور شو، احساس مې کړه چې زړه مې څوک په پنجو کې راکاږي، د مرگ له وېرې مې دومره ټوپونه وهلې وو چې د فولادو دواړه لینونه غوځ شوي وو او د هغې کړۍ مې د پښو د گوتو په غوښه کې ننوتې وې. د قوي بدن عسکر چې خپل زنگنونه زما ملا ته اړم کړي وو او زما پوزبند یې ټینگ نیولی و، دا هم زما د سختو ټوپونو له امله جدا شوي وو او ټوټه یې له لاسه خوشې شوې وه. له گوتو نه مې وینې بهېدې، خوله او ژبه مې وچه شوې وه، اوبه مې وغوښتې، عسکر یو گیلاس اوبه راکړې، ټولې مې د ژمي په یخه شپه کې وڅښلې، دوهم او دریم گیلاس مې هم وڅښلې، معلومه شوه چې د اوبو ورکولو په برخه کې یې سخاوت درلود، دغو اوبو څښلو دواړو خواو ته گټه لرله، ما ته هم چې زما د بدن د اوبو کسه ډیره یې بوره کاوه، او هغوی ته په دې خاطر، بدن چې هر څومره اوبه ولري د بل وار برېښنا یې جریان لپاره اغېزمن وي.

د شپې تر ۱۲ بجو پورې یې درې ځل برېښنایي شارتونه راکړل، او هر ځل مې د اعتراف په توگه لاسونه پورته کول، فرصت مې تر لاسه کاوه او اوبه به مې څښلې، هر ځل د پښو گوتې زخمي کېدل، خو زه د زړه له درېدلو وېرېدم، رېښتیا یې ویلي دي چې «انسان تر گل نازک او له اوسپنې سخت دی. » د دریم ځل په برقي شارت نه وم پوهېدلی، کله چې رابېدار شوم، نو په همغه ۱۵ نمبر خونه کې پر ځمکه د یوې

او هتيوالو له جسلي څخه وو. کاکا يې شاه محمود ګوډ وروسته بيا د کابل د ښار د ملي تاجرانو په نوم شهرت موندلی ؤ.

ډاکتر شاه ولي د بکلوريا په دوره کې ډېرې کمې خبرې کولې، ګوښه او غلی به ناست ؤ. د منځنۍ کچې تعليمي سويې خاوند ؤ او په دومره اندازه عاجز او ګوښه ؤ چې په نهم، لسم او يوولسم صنف کې د نورو شوخو همصنفيانو لخوا په ښوونځي او بهر کې آزارول کېده او زورول کېده. له هېچا سره يې اړوا نه ګډېدله، چې همدغه ګوښه توب د هغه د آزارولو سبب ګرځېده. ما هېڅ باور نه کولو چې د ډاکترۍ او ماموريت په دوره کې به په يو چپي او مخالف ګوند کې شامل شوی وي، ځکه هغه په يوه مذهبي او سوداګره کورنۍ کې پيدا شوی ؤ. د خلق په مارکسيستي او لېننستي حزب کې د هغه شموليت له تصور نه لرې خبره وه.

کله چې ما د دندې په اساس د خيبر د جنازې په مراسمو کې ګډون کړی ؤ او ډاکتر شاه ولي هم د جنازې د وړونکو د کتار به سر کې ليدل کېده، او له دفن کېدو وروسته چې کله د قبر له پاسه غونډه پيل شوه نو ډاکتر شاه ولي د مشرتابه پلاوي او ويناوالو په کتار کې ولاړ ؤ او د د. خ. ا. ګوند د اعلاميې دري متن يې ولوست. په همغه ورځ د ۱۳۵۷ کال د وري په ۲۸ مه چې کله ډاکتر شاه ولي اعلاميه لوستله نو د وري ۲۸ مه کال ۱۳۵٦ يې ولوست چې ټول خلک د هغه د دغې تلفظي اشتباه ته متوجه شول، خو هغه په خپله هېڅ متوجه نشو، خپلو خبرو ته يې دوام ورکړ او اعلاميه يې ترپايه ولوستله.

ما له خپل ټاکلي ګروپ سره د شپې په ۱۲ بجو په وزير اکبرخان مينه کې د هغه کور محاصره کړ او دروازه مې ورو ټکوله. يو ځوان چې عينکې يې په سترګو وې چې وروسته بيا د پښتون په نامه يادېده او په غالب ګومان چې زوی يې ؤ، دروازې ته راغی، ترې ومې پوښتل چې ډاکتر په کور کې شته؟ چټسي په سترګو ځوان چې د پوليسو وسايط وليدل يوڅه وارخطا شو او ويې ويل: هو! ډاکتر صيب په کور کې دی. په دې شيبه کې ډاکتر هم دروازې ته راغی، زه يې وليدلم، موسکی شو، له ما او زما له ټولو ملګرو افسرانو سره يې روغبړ وکړ. ما چې وروسته له ډېر وخت نه د

زړې قالينې په سر پروت وم. ټول بدن مې درد کاوه، يو ځوان چې سپينه کورتۍ يې اغوستې وه هغه هم د برقي شارتونو ورکولو نه وروسته دې خونې ته راوړل شوی ؤ. دواړه په يوه غم اخته وو، نوم يې راڅخه اوس هېر شوی دی، د غلام عمر «عسکرزوی» زوی، د ضبط احوالات د پخوانی رئيس جنرال غلام رسول خان له کورنۍ څخه ؤ. دغه ځوان مې درې مياشتې وروسته د پل چرخي زندان په دوهم بلاک کې ژوندي وليد. د ژمی د مرغومی د مياشتې يخه شپه مو بې له بسترې او کمپلې څخه په برقي شارتۍ ليدلی بدن او وينو شويو ګوتو سبا کړه. هغه تکليف او عذاب چې مونږ تر سهاره تېر کړ، ګران لوستونکی ته به د هغې تصور کول مشکل وي، هغه څه چې راباندې تېر شوي وو نشم کولای په قلم يې وليکم، دومره ويلای شم چې ډېر دردوونکی سخت او له زغم نه بهر ؤ.

## په استخباراتو کې د پلټنو دوهمه شپه:

د ماخستن له ډوډۍ خوړلو وروسته د شپې په ۹ بجو يې د عذاب او شکنجې همغې خونې ته همغو په شرابو مستو څلورو کسانو ته وروستم، شيبه په شيبه يې سګرټ لوګي کول، د عذابولو او شکنجه کولو همغه د پرونۍ شپې وسايل په خونه کې موجود وو، زه ډېر په تکليف وم، د پښو ګوتې مې زخمي او په وينو ککړې وې، سخت دردونه يې کول، په ځان کې مې د برقي شکنجې طاقت نه ليده، د پلټنو په پيل کې مې ورته وويل: «زه ډېر سخت په تکليف کې يم، بدن مې سخت درد کوي، نن شپه مې کېدای شي د برقي جريان په مهال زړه سکته وکړي، ښه به دا وي هغه تور چې په ما لګول شويدی د هغې سره سم اقرار او اعتراف وليکئ او هغه اشخاص چې تاسو پوهېږئ چې زما سره په جرم کې شريک دي د هغوی نومونه هم په اقرار کې شامل کړئ، زه د کوم شی د ليکلو وسه نه لرم، زه يې درته لاسليک کوم چې کار پای ته ورسېږي، نور څه غواړئ.» ټولو وخندل او ويې ويل چې: «نن دې عقل سر ته راغلی دی، ظالمه! مونږ پرون شپه ډېر درته وويل، خو فکر دې کار نه کاوه او په يو ځل دې د هرشی نه انکار وکړ، نن شپه دې عقل کار کوي، يو ګيلاس ګرم چای او يو

دا نه چاکلیټ یې راکړ، له دې کبله چې هغوی هم له همدې چایبر نه چای څښلې نو ما هم په داډ سره د چایو په څښلو شروع وکړه، خو چاکلیټ مې هسې نه چې نشه یي او مخدره مواد ولري په دې پلمه چې مرۍ مې سخت درد کوي ونه خوړ.

په دې وخت کې ساتنمن محمد عزیز د تحقیق خونې ته راننوت، څلور تنه پلټونې د درناوۍ په توګه ورته له ځایه پاڅېدل، په داسې حال کې چې میکروف تومانچه یې لکه د ماشومانو د لوبو د شیانو په شان د خپلې ګوتې په واسطه چې د ماشې په کړۍ کې یې ور ته اچولې وه څرخوله، له سترګو نه یې معلومېدله چې په شرابو مست ؤ او ژاوله یې ژوله، زما خواته یې وران وران کتل. له هغوی نه یې پوښتنه وکړه: «پلټنې کوم ځای ته رسېدلې؟» ورته ویې ویل: «پرون شپه یې ډېره بې اعتنایي لرله، نن شپه یې یوڅه عقل سرته راغلی دی، وایي اقرار کوم، مونږ هم چای ورکړ چې ښه فکر وکړي.» عزیز لکه د صحنې د نڅاګر په شان په کوټه کې قدم واهه، ژاوله یې ژوله او تومانچه یې په خپله ګوته کې څرخوله او ویل یې: «د توطیې ملګرو یې په خپل جرم اعتراف کړی دی، که دی اعتراف نه کوي نو د کور افراد یې هم راوغواړئ، له هغوی نه هم پلټنې وکړئ.» او له کوټې نه ووت. دا بې ربطه جملې راته د مستنطقینو داسې توضیح کړې، څوک چې په جرم اعتراف ونکړي، د کور غړي او ښځینه یې هم دلته راولي او د کورنۍ د ټولو غړو په مخکې مجرم او تورن ته سپکې او شرمونکې سزاګانې ورکوي. د دې خبرې په اورېدو ډېر وېرېدلی وم چې دې مستو ځناورو ښایي داسې هم کړي وي، د خپل شرف او ناموس د خوندي ساتلو په موخه دې ته چمتو شوم هرڅه چې زما له خولې نه د اقرار او اعتراف په نوم ولیکي خپلې اصلي امضاء ته باید تغییر ورکړم او هرڅه لاسلیک کړم. په دې هیله که چېرې انقلابي پوځي عدالت او محکمه موجوده وي نو ادعا به وکړم چې دا اقرار زما په قلم او زما په امضا نه دی، په خپله یې لیکلی دی، زه یې چې هرڅومره شکنجه او عذاب کړم ما په کوم جرم اعتراف نه دی کړی او کوم جرم نه لرم. په همدې فکر او تصمیم نیولو کې مې څو پیالې چای وڅښلې، یو له هغوی څخه زما اعتراف هرڅه یې چې غوښتل ولیکه ماته یې د لاسلیک لپاره راکړ. څو کرښې مې ژر ژر

ولوستلې، ګويا ما د سليمان لايق تر مشرۍ لاندې په ناکامه کودتا کې د پوليسو د برخې د يو شمېر افسرانو رهبري کوله او له څو تنو پوليس افسرانو سره مې چې نومونه يې هغوی ليکلي وو په همدې برخه کې تماس او اړيکې درلودلې، پاتې مې په غلطه لاسليک کړه او په دې ترتيب د برقي شکنجې او زورولو نه مې نجات وموند. خو د ژمي د يخنۍ شپه مې په همغه ۱۵ نمبر اتاق کې پرته له بسترې او کمپل نه تېره کړه. په دوهمه شپه په کوټه کې يوازې وم، هغه د تېرې شپې د سپينې کورتۍ ځوان په کوټه کې نه ؤ، د يخنۍ دا اووه شپه مې په داسې حال کې چې بدن مې دردونه کول سبا کړه، سبا ته د مازديګر په شاوخوا بجو د پوليسو له څو تنو افسرانو فاروق مياخېل، محمد علی احمديار، عبدالجميل نورستاني سره د اګسا د کورنۍ برخې مديريت ته وسپارل شوو، جګتورن محمد ظاهر پغماني هريو په جلاجلا کوټو کې تورن علی محمد اندرابي ته تسليم کړو.

## په اګسا کې د اصلي پلټنو پړاو:

کله چې د استخباراتو موټر مونږ اګسا ته جګتورن محمد ظاهر پغماني ته راووړو، له دې کبله چې جګتورن مې پخوا د کونړ ولايت د سرکانو په ولسوالۍ کې ليدلی ؤ او سره پېژندل مو هيله من وم چې هغه به د خپل قدرت په لاس راسره مرسته او همکاري وکړي خو ددې په خلاف هغه دومره ځان ناګاره کړ لکه بيخي مو چې سره ليدلي نه وي او هغه ما نه پېژني. په شپږم نمبر کوټه کې بندي شوم، په دې کوټه کې لس تنه وو، محمد علي احمديار، ابراهيم پهلوان، ډاکتر محمد نسيم لودين او ذبيح الله زيارمل مې پېژندل، له نورو سره مې د مخه پېژند ګلوي نه وه. ښوونکي، مامورين او حتی د ټيکسي ډريور هم د بنديانو په ډله کې ؤ. دا زندان د محمدزو د کورنۍ د يوه تن حويلۍ وه چې د سلطنتي کورنۍ د نورو منقوله او غير منقوله شتمنيو په څېر مصادره شوې وه. څو کوټې يې درلودلې چې لکه د ارهټ د منګوټيو په شان د سياسي جرمونو له تورنو کسانو څخه تشې او ډکېدلې. نظام الدين تهذيب او غلام فاروق چې وروسته بيا د جنرال فاروق په نوم د

کورنيو چارو د وزارت د سياسي چارو رئيس ؤ. سليمان لايق او يعقوب کمک مې ليدلي وو، او ډېر وخت وروسته مې هغوی بيا د پل څرخي په زندان کې هم وليدل. د دغې حويلۍ ځينې بنديان ورک شول چې تر ننه پورې يې خپلوان له مرگ او ژوند نه خبر نشول.

تعامل داسې ؤ چې د ورځې لخوا په بنديانو باندې شاقه کارونه د «اشر يا په خپله خوښه» په نوم کېدل او د شپې به ورنه پلټنې کېدلې. فکر کوم چې د ورځې لخوا د اگسا ټول کارکوونکي د نيولو او تالاشۍ په کارونو بوخت وو. بنديانو په کوټه کې په کراره خبرې کولای شوې خو له کوټې نه بهر هېچا د بل سره د خبرو کولو حق نه درلود.

ددې ودانۍ په څنگ حويلۍ کې چې هغه هم په سلطنتي کورنۍ پورې اړوند وه د پلټنو (عملياتو) کوټې وې چې تورن کسان به يې د شپې په خپلو پښو پلټونکو ته وروستل او بيا به يې په شا راوړل.

## په اگسا کې د پلټنو لومړۍ شپه:

د ۱۳۵۷ کال د جدي په ۲ مه د شپې د ډوډۍ له خوړلو وروسته په ۸:۳۰ بجو يې زه د گاونډې تعمير يوې کوټې ته د پلټنو لپاره بوتلم، مستنطق چې د منځنۍ قد خاوند او ملکي لباس يې په تن ؤ، د خبرو په جريان کې معلومه شوه چې جگتورن دی، مورنۍ ژبه يې دري وه او ژبه يې بندېدله، نوم يې غلام صديق او د پروان له اوسيدونکو څخه ؤ. په ظاهره ډېر خاموش، کم ويونکی او حوصله من ښکارېده، خو په هغه کچه ظالم، بې رحمه، سخت زړی او پوچ خولی ؤ چې هرڅوک يې له نومه ډارېدل. د تورنو کسانو په شکنجه او زورولو سربېره چې د اگسا د ټولو عمالو خاصيت ؤ په ښکنځلو او پوچو ويناو به يې چلن کاوه. د تورن مرگ او انساني ژوند، عزت النفس او د چا آبرو ورته هېڅ ارزښت نه درلود، د تورن له شکنجه کولو او هغه ته له ښکنځلو څخه به يې خوند اخيست. داسې شخص ته تحقيقات ورکول ماته ډېر ستونزمن وو، خو هېڅ چاره مې نه لرله، هڅه به مې کوله په شفاهي خبرو کې ورسره

په داسې ادب او درناوي وغږېږم ترڅو د هغه د پوچو ويناو مخه ونيسم، خو د هغه دغه عادت چې پوچه خوله يې خوځوله ماته له مرگ نه نجات راوباخښه. کله کله به چې غوسه شو، ماته به يې نامناسبې ويلې. ددې تولو ناوړه خويونو ترڅنگ يې هره شپه د تحقيق په سر او آخر کې ماته يو گيلاس چاى او يو دانه چاکليټ راکولو. ما چې د مصلحت ترمخه چاکليټ د مرۍ د درد او يا د شکر ناروغۍ په پلمه نه خوړ، چاى به يې چې هرڅومره راکولو له هغه سره به مې يوځاى څښلو.

اول يې راته څرگنده او تشريح کړه چې دې سازمان ته اگسا وايي، دې ځاى ته سياسي مجرمين، جاسوسان او دهشت اچوونکي راځي، عادي او جنايي مجرمين له دې ځاى سره کار نلري. مخکې له دې چې سياسي مجرمين دلته راوستل شي، د جرم د ثبوت اسناد يې بشپړېږي، وروسته بيا تورن تحقيق ته راوړاندې کېږي. د تورن انکار کول مونږ ته کوم اهميت نلري، په دې ځاى کې اصلاً منکر تورن شتون نلري، زمونږ سره داسې سامان آلات دي چې سخت سري او گونگ تورن هم لکه د طوطي په خبرو راولي. تا ته هم له وړاندې نه وايم، ستا د جرم اړوند اسناد په مکمل ډول کتلي دي، ستا د جرم شريکان ټول نيول شوي او په خپلو کړو يې اعتراف کړى دى، ستا انکار کول بې گټې دي، هغوى چمتو دي چې يو يو په تا گواهي ووايي، په دې سربېره تور دلايل او اسناد هم شته چې ستا جرم ثابت کړي. دلته د تورن له پاره درې امکانه شته، لومړى دا چې که خپله بې گناهي او برائت ثابت کړي نو کور ته ځي، دوهم دا چې که په خپل جرم اعتراف کوي او د هغې د نه تکرارولو ژمنه کوي نو د محکمې د پرېکړې تروخته د څرخي پله زندان ته ځي، درېيم هغه کسان دي چې په سخت سرۍ او د تور په نه اعتراف کولو سره د تحقيقاتو په دوام سره د بېلابېلو جزاگانو په ترڅ کې له منځه ځي، اوس ستا خوښه ده چې کومه لاره ځانته ټاکې؟

ما ورته په ډېره مؤدبانه او عاجزانه لهجه وويل: «زه د لومړۍ کتگورۍ په جمله کې يم ځکه هيڅ گناه نلرم.» په قهرجنه خندا يې وويل چې: «تا په دوهمه کتگورۍ کې شاملوو، په دې هکله فکر وکړه ترڅو دې سزا تخفيف ومومي.» دا

يې وويل او يوه پاڼه يې راکړه چې خپل نوم، د پلار نوم، عمر، مدني حالت، د تحصيل درجه، مورنۍ ژبه، خپلوان، رتبه، دنده، اصلي سکونت، فعلي سکونت، د شتمنۍ کچه، غير منقوله شتمنۍ او نور وليکم.

بله پوښتنه، د هغې پوښتنې کاپي وه چې د کورنيو چارو د وزارت د استخباراتو په مديريت کې يې راڅخه کړې وه او زما جواب يې په خپله ليکلی ؤ، سوال مې ولوست او شفاهي مې ورته وويل: «تاسو په خپله قضاوت وکړئ، زه د احتياط يو افسر يم، کومه قطعه او وسله په اختيار کې نلرم، له هغه شخص سره چې تاسو ورته د کودتا رهبر ويلی دي هيڅ کوم تماس او ارتباط نلرم، په خپل ټول عمر او ماموريت کې مې له هغه سره په کور او يا دفتر کې ملاقات نه دی کړی، نو څرنګه کېدای شي چې هغه ما کودتا ته راوبللي او يا دې زه په غياب کې پرته له کوم دليل او موجب نه د هغه تر رهبرۍ لاندې ګروپ کې شامل شوی وم، په داسې حال کې چې زه د اوسنۍ رژيم نه کوم شکايت نلرم، د کوم مقام ادعا نه کوم، د کومې پوځي قطعې په رأس کې نه يم، بلکې پوره اته مياشتې وړاندې مې د ثور د اوومې د وسله وال پاڅون په مهال په سربښندنه سره د د. خ. ا. ګوند مشرانو ته د نجات ورکولو فعاليت ترسره کړی ؤ اوس کوم ظالم په ناحقه زه په دغه جرم تورن کړی يم، باور وکړئ چې زه له هيڅ شي نه خبر نه يم او د داسې کړنو مخالف يم.»

په داسې حال کې چې په زړه کې مې د پاڅون د ورځې په فعاليت پښېماني ښودله، ورته مې وويل: «تاسو معلومات کولای شئ د دوه ټانکونو په واسطه له دوه تنه انقلابي افسرانو سيد رحيم او يوسف سحر سره يوځای مو په ولايت کابل او نظارتخانه باندې بريد وکړ او د د. خ. ا. ګوند رهبران مو په داسې حال کې له زندان نه آزاد کړل چې د رژيم پلوي قطعات په ټينګه د پاڅون د ټکولو لپاره جنګېدل، که احياناً د ثور د ۷ مې وسله وال پاڅون بري ته نه رسېدای د رژيم له خوا به چې زه د کابل ولايت د امنيه قوماندانۍ د افسرانو له جملې څخه وم، سرنوشت به مې کوم ځای ته رسېدلای، اوس چې له هغې څخه اته مياشتې تېرېږي او زه د احتياطو په بست کې د ماليې وزارت د خدمتي په توګه په خپل کار کې بوخت يم، ولې او په کوم

دلیل به مې په ناکامه کود تا کې ګډون کړی وي. پاملرنه وکړئ کوم مغرضانه لاس به وي چې مسلکي کادرونه د رژیم په وړاندې بدناموي. » هرڅه مې چې وویل، پلټونکو ډېر کم واورېدل او زما ټولې خبرې یې لفاظي وبلله، هماغه لعنتي ماشین چې د بېګناه تورنو د اقرار کولو یوازینۍ وسیله وه راته وتړله او لکه د پخوا په شان شارتي راکړه، نور په ځان نه وم پوهېدلی، یو وخت چې په شپږم نمبر کوټه کې مې سر ته ډاکتر نسیم سلودین او نور بندیان ناست وو او زما د ګوتو وینې چې د فولادي سیمونو د ورننوتلو له امله زخمي شوې وې او په وینو ککړې وې په سپینه توټه او تودو اوبو پرېمنځلې. ډاکتر لودین یو ګیلاس چای او یوه د اسپرین ګولۍ راکړه او ویل یې مونږ ټولو لږ او ډېر دا حالت لیدلی دی، څښتن تعالی دې زمونږ او ستاسو په حال رحم وکړي.

### د تحقیقاتو دوهمه شپه:

د لومړۍ شپې د برېښنا شارتۍ او شکنجې له پلټنو وروسته یې ماته یوه شپه او ورځ مهلت راکړ. په دوهم ځل په ۹:۱۵ بجو د پلټنو کوټې ته لاړم، له ځانه سره مې هوډ وکړ هغه څه مې چې د کورنیو چارو د وزارت په استخباراتو کې ویلي وو غلام صدیق ته یې هم وو ایم چې ناروغ یم، بدن مې سخت دردونه کوي، د لیکلو وس مې نشته، سره له دې چې مستنطق د تېرې شپې برخلاف تروه تنده نیولې وه او غضبناک ؤ، بیا یې هم یو ګیلاس چای راکړ، «څنګه نن شپه تحقیقاتو ته چمتو یې؟ له ځانه سره دې فکر کړی دی، په خپل جرم اعتراف کې که لکه د پخوا په شان زما وخت ضایع کوې او ځان په عذاب کوې؟ » ورته مې وویل: «څه وو ایم، ټول حقایق مې تېره شپه په شفاهي ډول تاسو ته څرګند کړل، تاسو چې باور نه کوئ، نو زه څه چاره لرم؟ که ژبنتیا ګواهي او یا اسناد زما په برخه کې موجود وي مهرباني وکړئ ښکاره یې کړئ، د تحقیق شیوه خو همدا ده. په هغه صورت کې چې شواهد او اسناد موجود وي نو د انکاري تورن مخې ته ایښودل کېږي او تورن بې جوابه پاتې کېږي، نه داسې تور چې زه یې بې موجبه د مرګ او ژوند پولې ته رسولی یم که د جرم د

ثبوت مدرک او شواهد موجود وي نو زما په حال رحم وکړئ، مهرباني وکړئ هغه راته وښايئ ترڅو ستاسو تکليف کم شي او زما سرنوشت هرڅه چې وي وټاکل شي. او که نه هرو مرو ټاکل شوي وي چې زه د توطيه کوونکي او مجرم په نوم مجازات شم، نو مهرباني وکړئ تاسو چې هرڅه ليکئ زه يې لاسليکوم، زه په خپله دومره بې وسه او بې تابه يم چې د يوې کرښې د ليکلو تاب هم نلرم، تاسو وليدل چې زه يو عسکر د متېو او اوړو په زور تاسو ته حاضر کړم. » ددې خبرو په اورېدو لې موسکي شو وېې ويل: « اوس دې عقل لږ کار وکړ، خير دی نن شپه هم استراحت وکړه، سبا ته ښه فکر وکړه او خپل اقرار په خپل قلم وليکه. سبا شپې ته هم زما او د مستنطق په منځ کې هماغه ستونزه حل نشوه. ما ټينګار کاوه چې زما فکر او هوښ کار نه کوي، د ليکلو طاقت مې نشته، غلام صديق په دې راضي شو، يوه ليکنه چې تقريباً هماغه د استخباراتو د ليکنې کاپي وه راکړه او وېې ويل: « نن شپه هم لاړ شه، استراحت وکړه، سبا ته په خپله کوټه کې دهرې پوښتنې په مقابل کې په خپل قلم جواب وليکه. » په دې ترتيب مې يوه بله شپه هم فرصت وموند، هڅه مې کوله په هر ترتيب چې وي مستنطق په دې قانع کړم چې په خپله زما جوبونه په خپل قلم وليکي او زه هغه په غلطه امضاء، امضاء کړم، ترڅو په محکمه کې ځان ته دلايل ولرم. په بله شپه هم چې کله پرته له جوابونو له سپينې پاڼې سره حاضر شوم، ډېر قهرجن او غضبناک ؤ او ښکنځل او ناوړه وينا يې راته وکړه. دا ځل يې د برقي شارتۍ تارونه زما د پښو له بندونو څخه تاو کړي وو، ځکه د څو تېرو شپو د همدغه ډول عمليې له امله مې د پښو تولې ګوتې زخمي شوې وې او په دې ترڅ کې يې په غضبناکه او قهرجنه څيره پوچې او ناوړه ښکنځلې کولې چې زه دې څو شپې تېر ايستم او حال دا چې په لومړيو تحقيقاتو کې دې په خپل جرم اعتراف کړی دی، بيا هم مقاومت کوې او له حقايقو نه سترګې پټوې، ما ته دې د يو ماشوم په شان فرېب راکړ، خوله يې زګ کړې ؤ او په پرله پسې ډول يې ښکنځلې کولې، په داسې حال کې چې پښې مې د ماشين په سيم تړل شوې وې په زارۍ مې ورته وويل: « آخر ما تاسو ته پېشنهاد وکړ چې هرڅه غواړې زما له خولې يې وليکه، زه يې امضاء کوم،

زه ستاسو په وړاندې کوم مقاومت او ټینګار نه کوم، د هغه تکلیف له امله چې لرم یې نشم کولای هغه چې ستاسو غوښتنه ده سم یې ولیکم، تاسو چې یو مشر او قابل شخصیت یئ او زه ستاسو یو تورن او بندي یم، پلار او مور مې چې کومه ګناه نلري مناسب نه ده چې هغوی وښکنځل شي، ما ته چې هرڅه وایئ او هرڅه چې راباندې کوئ اختیار لرئ، ستاسو له حزبي او رسمي مقام سره نه ښايي چې زما د بېګناه مور او پلار توهین وشي. » ما غوښتل چې د جنون ترحده هغه په دې جملو آرام کړم او په دې یې راضي کړم چې جوابونه مې ولیکي چې ناڅاپه په یو څلور کونجه لرګي چې فکر کوم د کوم مېز یا چوکۍ پښه به وه زما د تشو او ملا په وهلو یې شروع وکړه او ویل یې: « چلباز خاینه ددې پرځای چې خپل اعتراف ولیکې پرله پسې یوه اونۍ دې په وعدو سره زه تېر ایستم، اوس دې راته د پلار په شان نصیحتونه شروع کړي دي، په دوه درې کللو ګوزارونو سره مې پوښتۍ ودردېدلې او په ځمکه وغورځېدم، زه نپوهېدم دا صحنه دوه تنو تورنو چې د تحقیقاتو په دې کوټه کې وو په خپلو سترګو لیدلې وه، سبا ته ماز دیګر د څلورو بجو په شاوخوا کې چې د دوه تنو په مرسته تشناب ته تلم، ښاغلی یعقوب کمک چې ددې صحنې لیدونکی وو، وکله چې یې زما پوښتۍ د پلستر په شان په سپینه لونګۍ تړلې ولیدلې نو د سر په اشاره یې همدومره وویل چې ریښتیا دا خلک ظالم، وحشي او بې رحمه دي. څه وخت یې چې زه نیمه شپه د کوما په حال کې ګوتې ته راوړی وم، ډاکتر نسیم لودین له یوه تن تېکسي ډرېور څخه چې سپینه پراشوتي لونګۍ یې پر سر وه، په موقتي توګه له هغه څخه اخیستې وه او زما پوښتۍ یې وړباندې لکه د پلستر په شان ټینګې تړلې وې. زه چې په هوښ کې راغلم و مې لیدل چې پوښتۍ مې په لونګۍ تړل شوې او دومره درد یې کاوه چې په یوه اوخ هم نشوم ځملاستلی. ډاکتر وویل: بله هېڅ چاره نشته، یوه د اسپرین ګولۍ او یو ګیلاس چای یې راکړ، د شاتو یو تش بوتل یې راواخیست او د پوکۍ (پوف) عملیه یې په عملي ډول راوښوده او ویې ویل څومره چې دې زور او قوت وي په همغه اندازه د درد په زغملو سره شپه او ورځ دا عملیه تکراروه، که پوښتۍ دې ماتې او یا کسر موندلی وي نو بې نقصانه به جوړې شي او

کـه نه نو پوښتـنې بـه دې کـړې پاتې شي، تر آخـره بـه عـيـب جنې وي او تـكـليـف بـه درکـوي، د زندان په دې اوسنـيـو شـرايطو کـې بلـه هېڅ چاره نلري. د ښاغلي لودين همدا تجويز راته ګټور تمام شو. تر دوه مياشتو مې همدا د پوکي عمليه تکرارولـه، خو وروسـتـه بـه مې ښـه پـه زور سره پوکي ورکـاوه، يو کـال وروسـتـه چې لـه زندان نـه خوشې شوم، د فوټو ګرافۍ په معايناتو کې څرګنده شوه چې يوې پوښتۍ مې په اصلي حالت سره جوش خوړلی دی او بلـه پوښتۍ لـه اصلي حالت نـه يو څـه کږه پاتې شويده چې اوس هم د ژمي په يخ موسم کې تکليف راکوي.

تر دريو ورځو پورې مې تشناب ته د تللو طاقت هم نـه درلود. پـه څلورمـه ورځ پـه داسې حال کې چې دواړه لاسونـه مې د دوه عسکرو پـه اوږو تکيـه کړي وو د تحقيق کوټې تـه لاړم. دا ځل د تېرو شپـو برخـلاف د ورځې لخوا پلټنې پيـل شوې. بيـا هم زمونږ ترمنځ هغـه پخوانۍ جنجال موجود ؤ چې زه ليکل نشم کولی، خو مستنطق تر وروستيـو شـېبو چمتـو نـه ؤ چې پـه خپل قلم جوابونـه وليکي، پـه دې راضي شـو چې ورو ورو د همغې مسودې لـه مخې راتـه ديکتـه وکړي او زه پـه خپل قلم ليکل وکړم، بلـه چاره نـه وه. ما هم قلم واخيست هرڅـه بـه چې هغـه ويل ما بـه د مفهوم پـه تغيير سره ورو ورو ليکل او پـه دې ډېر خوشحالـه ؤ چې زه اعتراف کوم، خو ما بـه خپل دلايل د هغـه لـه جملو سره پيوند کړ، مثلاً د سليمان لايق پـه اړه مې وليکل چې هو، هغـه لـه څو کالو راپدېخوا پېژنم چې د د. خ. ا. د رهبرانو څخه يو دی، خو لـه هغـه سره مې کومې ځانګړې اړيکې نـه لرلې او نـه يې لرم. همدا راز د عبدالصمد ازهر، عبدالجميل نورستاني، عبدالباقي، فاروق مياخيل، محمد علی احمديار او مير آقا محمود پـه باره کې چې دا ټول د پوليس افسران او د ګوند غړي دي د تحصيل لـه دورې څخه تراوسـه ورسره معرفت لرم، کـه هغوی پـه جرم اعتراف کړی وي پـه ما پورې ارتباط نلري او داسې نور. نور، هغـه بـه خپل مطالب راتـه ديکتـه کول او مـا بـه د خپلې بېګناهۍ جوابونـه ليکل. د جوابونو ليکل لا پای تـه نـه وو رسېدلي چې يو بريتـو د توري څهرې او دنګې ونې ځوان کوټې تـه راننوت، پـه کوټـه کې ناست ټول پلټونکي د درناوي لپاره ورتـه لـه خپلو ځايونو پاڅېدل، زه متهم هم پـه ډېر زحمت سره پـه داسې

بکلوریا د دورې له یو همصنفي سره په داسې حال کې ملاقات وکړ چې د هغه په نیولو او د کور په تالاشي کولو مؤظف شوی وم، په خندا خندا کې مې د لوی څارنوال له امر او د دولت له تصمیم څخه هغه خبر کړ، او اجازه مې وغوښته چې کور ته ننوځو. ډاکتر هم پرته له کومولي او ځنګه، پلاوي ته د ننوتو اجازه ورکړه. ددهٔ او ددهٔ د ځوان زوی په شتون کې مو د کور تالاشي پیل کړه. په تصادفي توګه په دغه شپه د ډاکتر میرمن په کور کې نه وه او ډاکتر د ښځې د نشتوالی له کبله په دغه شپه د کور په تالاشۍ خوښ ؤ. ویل یې ښځه مې د زړه تکلیف لري، ښه ده چې نن شپه د پلار کره تللې ده او موجوده نه ده، خو یو زوی او یوه لور یې په کور کې موجود وو.

د ډاکتر شاه ولي کور په پوخ ډول درې پوړیزه جوړ شوی ؤ چې لومړی پوړ یې د ځمکې لاندې زیر زمیني په بڼه ؤ. په دې منزل کې خوراکي توکی لکه وریجې، غوړي، اوړه، حبوبات، لوبيې او نور فالتو سامانونه ایښودل شوي وو. وریجې په ډېره کچه او څو ډوله غوړي ځوبېلړه او همدا رنګه حبوبات هم په ډېر مقدار کې چې د یوې میاشتې له لګښت څخه هم زیات وو، هلته پراته وو. ددغو توکو د ډېروالی د علت په اړه مې ورنه وپوښتل چې آیا دا ګودام او زیرمه د یوه کور ده؟ او که د خرڅلاو مغازه ده؟ ډاکتر وویل: زما او زما د کاکا فامیل لوی دی او مونږ تل د یوه کال د اړتیا وړ شیزونه زیرمه کوو.

په دوهم او دریم چت کې د هرکلي هال، د خوب، ډوډۍ خوړلو، مطالعې او نورو اړتیا و اتاقونه وو. په هر منزل کې بېل بېل او په عصري ډول تشناب او پخلنځي ؤ. ټول مې له نظره تېر کړل، حیران شوم چې د یو عادي ډاکتر د عایداتو او ددې ښکلي او مجلل کور خو هېڅ تناسب سره نه کېږي. ډېر عالي موبل او فرنیچر او قیمتي قالینې او ډېر ښکلي ډیکوریشن شوی دا کور د زحمت کښانو کارګرانو او دهقانانو له ګوند سره چې هغوی لاپې وهلې هېڅ تناسب نلري. په هر صورت مونږ په کې څه کار نه درلود، تالاشي پای ته ورسېده، یو میل تومانچه چې قطر یې ۶.۳۵ ملي متره وه له پنځه سوه دانو مرمیو سره، یو شمېر حزبي خپرونې او کتابونه، د حق العضویتونو یو لست، د حزب د غړو له پنځه سوه زرو افغانیو له حق

حال کې چې لاسونه مې په مېز پورې تینګ نیولي وو د درناوي لپاره ودرېدم. دغه ددنګې ونې ځوان چې رنګه چشمې یې په سترګو وې نه مې و پېژندلې، ماته یې چې وکتل، زه یې وپېژندم او ښنګ ته راغی او ویې ویل: «ته څه وخت دلته راغلی یې؟» سلام یې وکړ او بیا یې وپوښتل: «دلته د څه لپاره؟» ما بیا هم ونه پېژندلو، خو غږ یې زما په غوږونو آشنا ولګېد. چشمې یې له سترګو لرې کړې او ویې ویل: «زه دې وپېژندم؟» ومې ویل: «نه، فکر مې خراب دی، ځای ته مې رانه وړې، غږ دې راته آشنا معلومېږي خو زه ناروغ یم.» ځان یې راته معرفي کړ چې په ۱۳۵۱ کال کې چې کله د بغلان په یوه ولسوالۍ کې زه د امنیې قوماندان وم، نومړی جلال الدین زما د همکارانو له جملې څخه ؤ، او د یوې نسبتي دوسیې له امله چې له ما سره یې لرله مرسته ورسره کړې وه ترڅو له کلني ترفیع څخه پاتې نشي. د همغې ښېګړې له کبله یې ماسره د ښه چلن له مخې راواړاندې شو زما د دوسیې پاڼې یې ولوستلې، د سر په خوځولو یې خپل مستنطق وپوهاوه چې دا ټول راپورونه ددې شخص په برخه کې غلط دي، مغرضانه دي، کوم شخصي عناد دي، زه دی پېژنم، ډېر ښه یې پېژنم، دی خاین نه دی. دا یې وویل او غلام صدیق ته یې امر وکړ: «تراوسه هرڅه چې شوي دي، یو وروستنی سوال ورکړئ چې خپل ځواب په دلایلو سره ولیکي، دوسیه پای ته ورسوئ او ماته یې راوړئ چې په اړه یې له رئیس صاحب سره خبرې وکړم.» غلام صدیق چې ماته خجالت ؤ او فکر یې کاوه چې ټول مظالم به یې بیانوم ویې ویل: «په سترګو، اطاعت کېږي، همدا اوس دوسیه ختموم او ستاسو دفتر ته یې وړاندې کوم.»

جلال الدین افسوس وکړ چې په دې اونۍ کې په کومه دنده تللی ؤ، که نه نو دومره تکلیف به مې نه لیده. زما مخ ته به یې ځې کتل پوهېده به چې ډېر عذاب او شکنجه مې لیدلې ده او بیا به یې تأسف کاوه. سګرټ یې راکړ او یوڅه پیسې یې چې په جیب کې لرلې ماته وړاندې کړې، په خندا مې ورته وویل: «دلته نغدې پیسې نه په کاریږي، که شونې وي لږ مسکن درمل او یوڅه د انتی بیوتیک کپسولونه او یوڅو ډبې سګرټ له بازاره راته تهیه کړه.» کومې نغدې پیسې چې راسره وې، ورته

وړاندې مې کړې. پيسې يې وانخيستې، خپل سگرټ او اور لگيت يې ما ته راکړ او له کوټې نه ووت او ويې ويل تاسو خپل ورو ستی جواب وليکئ زه بېرته راځم. زه له همغه بدخويه غلام صديق سره مېز ته کښېناستم او په آخري جواب ليکلو مې بيل وکړ. په څو جملو کې جواب پای ته ورسېد او لاسليک مې کړ. مستنطق رانه وپوښتل: «له مدير صاحب سره څه خپلوي لرې؟» ومې ويل: «هېڅ قرابت وا سره نلرم، لکه څرنگه يې چې په خپله وويل څو کاله وړاندې زما تر لاس لاندې زما د همکارانو له جملې څخه ؤ، بله کومه خپلوي ور سره نلرم.»

زما له تېرو زورونو، شکنجو او عذابولو معذرت يې په خپله بنده ژبه وغوښت. زه د هغه ښکنځلو د بر زوروځلی وم، هېڅ مې ورته ونه ويل، په دې وخت کې جلال الدين بيا راغی، يو گرز سگرټ، يوه زياته اندازه مسکن، انتی بيوتيک، تقويې درمل او يو څو خوب راوړونکې گولۍ يې له ځانه سره راوړې وې او د نظارتخانې تر انگړ پورې يې زما ملگرتيا وکړه، ويې ويل: «متأسفانه چې زه يو څو ورځې نه وم، هرومرو تا تکليف او شکنجه ليدلې ده، په هر صورت زه کوښښ کوم چې لوړ مقامات ستا په بې گناهۍ قانع کړم، تاسو اوس استراحت وکړئ، د شپې لخوا يوه د خوب گولۍ وخورئ، زه بيا ستا احوال اخلم.»

درې شپې مې په مسکن درملو او خوب گولۍ په خوړلو سره استراحت وکړ، د ۱۳۵۷ کال د مرغومې په لومړۍ نېټه د ورځې په دوه بجو جلال الدين شپږم نمبر کوټې ته راننوت، ابراهيم پهلوان يې له زندان نه خوشې کړ او زيری يې ورکړ چې ته آزاد يې، زما د دفتر ته لاړ شه د دروازې تکټ له ځانه سره واخله او کور ته ځه. بيا زما څنگ ته راغی او په ورو يې راته په غوږ کې وويل چې: «متأسفانه ستا په خوشې کولو کې په خپل پلان کې ناکام شوم، دومره مې وکړای شول چې دوسيه او تحقيقات دې پای ته ورسېدل او نن شپه له څو نورو کسانو سره د څرخي پل زندان ته لېږدول کېږې، ډاډه اوسه چې ستا په دوسيه کې د جرم د ثبوت کوم سند نشته. خو سره له دې هم زه خپل کوښښ ته ادامه ورکوم او پر ته له دې هم انشاء الله له محکمې څخه خپل برائت ترلاسه کوې.» په دې ترتيب د اگسا اونۍ مې د عذاب او شکنجو په زغملو تېره کړه.

## د ځرخي پل په زندان کې يو کال:

د ۱۳۵۷ کال د مرغومی د میاشتې په لومړۍ اونۍ کې په امبولانس موټر کې له څو تنو پولیس افسرانو سره له اگسا نه د ځرخي پل سیاسي زندان دوهم بلاک ته ماز دیگر مهال ولیږدول شوو. له دې امله چې د هرې شپې د عذاب او شکنجې نه مو نجات موندلی ؤ او د خپل سرنوشت د ټاکلو انتظار مو درلود، مونږ ټولو له اگسا څخه زندان ته چې لږ ترلږه له وهلو ټکولو، شکنجې او عذاب نه مو نجات موندلی دی، ترجیح ورکوله. په هر بلاک کې د يو ټولی قوماندانۍ دنده ترسره کوله، د ټولی قوماندان زه له درې تنو هریو عبدالجمیل نورستاني، میر آقا محمود او نصیراحمد سره د اول منزل په ۳ نمبر غتې کوټه کې بندیان کړو، نور یې په نورو کوټو وویشل. زمونږ په کوټه کې چې اوس نوی کانکریټ شوی ؤ، فرش یې وچ ښکارېده، خو له دې امله چې کومه زیرزمینی د زندان په ودانۍ کې نه وه مرطوبه وه. زمونږ لپاره د اول ټولی د اداري لخوا، دوه متری یوه تخته سطرنجی، توشک، روجایي، کمپل او چپلکې راکړل شوې. دې غتې کوټې د وتلو او ننوتلو دوه دروازې د دهلېز په طرف درلودلې. د دوارو دروازو په منځ کې یوه ۳ x ٤ مترو کوټه چې تراوسه کانکریټ شوی نه وه موجوده وه، او اصلاً دا کوټه د بندیانو د بکسونو او سامان اېښودو او جامو بدلولو لپاره وه. غتې کوټې ځلور سمنټي پایې یا ستنې لرلې، د سلو واټو نږدې شل گروپونه په کې روښانه وو، ۳ هواکشونه یې چې کوچنی او پنجره لرونکی وو درلودل، اولین گروپ د بندیانو زمونږ ؤ چې د ځلورو تنو په گروپ کې دې کوټې ته راوستل شوو. دا کوټه له ماديگر نه تر ماښامه تیاره وه، دا کوټه په خپل طول او عرض سره له سیاسي بندیانو څخه ډکه شوه. د شپې مې چې وشمارل ۱۲۰ تنه په کې ځای پرځای شوی وو. په دې ترتیب د دړې وارو بلاکونو د دریم پوړ په ټولو کوټو کې چې لابشپړ شوی نه وو په هر دهلیز کې ۲۰ تشنابونه او غسل خانې وې، د اوبو رسولو سیستم او نور ضروریات یې نه ؤ بشپړ شوی. په دغو تشنابونو کې هم بندیان اچول شوي وو. په یوه هفته کې له خپل ټول طول او عرض او پراختیا سره دوهم بلاک له سیاسي بندیانو څخه ډک شو، ته به وایې ټول هیواد د رژیم مخالف

دي او زندان ته راوستل کېږي. د اردو افسران، پولیس، روڼاندي، استادان، عالمان، روحانیون، د قومونو مشران، مامورین، د دولتي ادارو کارکوونکي، ځمکه وال، هټیوال، کسبګر، ملي سوداګر او نور، ټول پر ته له کوم توپیره د سیاسي بندیانو په نوم د څرخي پل زندان ته راوړل کېدل.

## د کوټه قلفۍ سیستم:

د نړۍ په ټولو سیاسي محبسونو کې د کوټه قلفۍ سیستم د ټولو سیاسي بندیانو لپاره رواج لري او ډېر مهم دی. د پل چرخي زندان کې په هر منزل او دهلېز کې یو شمېر کوچنۍ کوچنۍ کوټې وې چې فکر کوم په همدې منظور په پام کې نیول شوې وې، خو ټولې یې د بلاک افسرانو او دلګۍ مشرانو اشغال کړې وې. مخکې ورته اشاره وشوه چې په هر دهلیز کې یو شمېر کمود، تشناب او غسل خانو شتون درلود، څرنګه چې لاتکمیل شوې نه وو نو یو شمېر یې د کوټه قلفۍ لپاره کارول کېدل او په پاتې نورو کې ۲، ۳ تنه بندیال اچول شوي وو، هرو لسو تشنابونو یو دهلیز درلود چې په هر دهلیز کې یولس تنه بندیان څنګ په څنګ ځای پرځای شوي وو. کله به چې کوم چا د زندان له مقرراتو نه غاړه غړوله، د بیلګې په ډول که څوک په قطعه بازۍ نیول کېدل، او یا به له چا سره سپین کاغذ، پنسل، قلم، چاقو، حتی چاقو لرونکي نوک تراش پیدا کېده نو د یوې مودې لپاره به کوټه قلفي کېده.

ټولو کوټو په ځانګړې توګه دهلیزونو او تشنابونو د لمر رڼا نه لیدله او د ټولو بلاکونو اول منزل مرطوب وو. بندیان په ځمکه چې ۱۰۶۰ یا ۱۰۸۰ متره ساحه به وه خوا په خوا ځای پرځای شوي وو. هواکشونه د بندیانو د شمېر په تناسب نه وو، ټولې کوټې چټلې او د اول منزل بندیانو د روماتېزم په ناروغۍ اخته شوي وو.

## د زندان د بیت الخلاء سیستم:

مخکې وویل شول چې د زندان کمودونه او تشنابونه بشپړ او فعال شوي نه وو چې محبس افتتاح شو او له خپل ګنجایش نه په زیاتو سیاسي بندیانو ډک شو. د هر

بلاک په انګړ کې عادي بدرفونه داسې جوړ شوي وو چې په ۲-۳ ځایونو کې ځمکه د ۲-۳ مترو په ژوروالی یو متر سور او د ۳۰ مترو په اوږدوالی کیندل شوي وه، د لرګی په تختو پوښلی شوي وه او لرګینې غرفې څنګ په څنګ د لرګو له تختو څخه جوړې شوې وې، دروازې یې نه درلودلې په یوه شپه او ورځ کې دوه ځل سهار او ماښام د یوه بلاک د هر منزل لپاره یو ساعت وخت د رفع حاجت کولو لپاره ټاکل شوی ؤ چې د دلګي مشرانو لخوا د وخت پیل او پای د شپلاق په واسطه اعلانېده. د بندیانو شمېر زیات او د لرګینو غرفو شمېر کم ؤ، د هرې غرفې لپاره په هر وخت کې له شلو تنو څخه زیاتو د نوبت نیولو لپاره کتار جوړاوه، له دې امله چې غرفو پرده او دروازه نه لرله او له بله پلوه خوا په خوا او د لرګي د تختو په واسطه یو له بله جدا شوي وې، ټول انسانان په خاص ډول افغانان دا خوښوي چې د رفع حاجت په وخت کې مستور وي، خو د محبس په چوبي غرفو کې دا نزاکت نه رعایت کېده. لومړی دا چې د هرې غرفې مخې ته د دروازې مخامخ زیات شمېر بندیانو د نوبت لپاره یو د بل شاته لیکه جوړوله، او څوک به چې په غرفه کې ؤ نو په ډېر خجالت سره به یې رفع حاجت کاوه، خو له دې امله چې دا خجالت عام ؤ نو ورو ورو په بندیانو کې عادت وګرځېد. مهمه ستونزه د بندیانو لپاره دا وه چې په یوه شپه او ورځ کې یوازې دوه ځل (سهار او مازدیګر) د رفع حاجت لپاره وخت ټاکل شوی ؤ، څوک چې ناروغان وو او یا د چای او مایعاتو د څښلو له امله به ورته د ورځې څو کرته رفع حاجت ته اړتیا پېښېده په ډېر عذر او فریادونو به اړوندو دلګی مشرانو اجازه ورکوله چې غرفو ته لاړ شي. دا ستونزه د شپې له خوا ډېره اړینه وه، ځینی وخت به د دروازو د قلفونو کونجیانې نوکریوال افسرانو له ځانه سره وړلې، مجبور او ناروغ کسان اړ وو چې په پلاستیکي کڅوړو کې خپل حاجت رفع کړي، د کڅوړو خوله په تار وتړي او په همغه کوټه کې یې خوا په خوا ډېره تر سبا پورې کېږدي چې د بندیانو د جامو بدلولو په نامه یادېدله او سبا ته د تفریح په مهال هر سړی خپله اړونده کڅوړه له ځانه سره بهر ته یوسي او په لرګینو کنارابونو کې وغورځوي. د مشکلاتو دغه حالت د محبس د قوماندان سید عبدالله په تېږي کېدو او تبدیلېدو سره یو څه ښه شو چې په راتلونکی کې به ورباندې بحث وکړو.

## په زندان کې د څښلو اوبه:

په زندان کې بله ستونزه د اوبو وه ځکه د اوبو رسولو سیستم فعال شوی نه ؤ. په هر بلاک کې ۲-۳ فلزي حوضونه چې سرونه یې خلاص وو اېښودل شوي وو، له بهر نه به د ټانکرونو په واسطه اوبه راوړل کېدې او په دې حوضونو کې به زېرمه کېدې، له همدې حوضونو څخه د څښلو اوبه، د اودسونو او غسلونو اوبه، جامو او نورو شیانو د وینځلو لپاره اخیستل کېدې. د حوضونه سرونه خلاص وو او کومه نلکه (شیردهن) یې نه درلوده. هر سړی اړ ؤ چې په کوزو او سطلونو کې ورڅخه اوبه واخلي، چې په دې ترتیب دا حوضونه د اوبو زیرمې نه بلکې د مکروبو زېرمې وې. په لومړي سر کې به ټول بندیان د اسهال، معدې او د امیب په ناروغیو اخته کېدل. زه متهم هم یوځل د امیب په ناروغۍ اخته شوی وم. له هغې وروسته به مې تل چای څښلو او هم به په هر مشکل سره به چې کېدله یو ترموز چای د شپې او ورځې لپاره برابراوه او ترپایه مې خامې اوبه ونه څښلې.

د چای برابرول یوه بله ستونزه وه ځکه په زندان کې کوم هوټل او سماوار شتون نه درلود. د سهار لخوا به چې سرکاري چای ویشل کېده زیاتره به سوړ او اوبه به یې ښې خوټېدلې نه وې، چا ورڅخه استفاده نه کوله. برقي سامان آلات لکه آب گرمي، په بندیانو باندې بند ؤ. لکه چې وایي احتیاج د ایجاد مور ده، په هره عمومي کوټه او په هر بلاک کې ډېر شمېر د برېښنا انجنیران او ماهرین د بندیانو په جمله کې موجود وو، د پوډري شېدو له خاصو قطیو او دوه دانو د ږیرې خریلو له پاکیو څخه یې آب گرمي جوړه کړې وه او سیمونه یې چې له قطیو جوړ کړي وو د پلاستیکي کڅوړو په واسطه پوښل شوي وو، او په پټه سره په هره کوټه کې یوه یا دوه دانې آب گرمي گانې موجود وې او بندیانو په پټه سره په پلاستیکي کوزو کې ځان ته چای برابراوه او په ترموزونو کې به یې خوندي ساته. کله به چې د تفتیش او تالاشۍ په مهال چې په اونۍ کې به یو یا دوه ځله کېدله که د چا د بالبنت د پوښ له منځه او یا له کمپل نه لاس ته راوړل کېدله، نو دغه خوارکی

به د دغه جرم په کولو د یوڅه وخت لپاره په تشناب کې کوټه قلفي کېده، خو د سختیو او تکلیفونو د زغملو سره به یې آب گرمي او چای ځان ته برابرولو، خو د ځینو لپاره صحي اوبو شتون نه درلود.

## د پل څرخي د سیاسي زندان مقررات:

د څرخي پل د سیاسي زندان مقررات د نورو نړۍ له سیاسي زندانونو څخه بېل مقررات درلودل چې د زندان د قوماندان لخوا وضع شوی وو او ډېر ملاماتوونکي وو.

هېڅ حق نه درلود غوڅوونکی آله لکه چاقو، چاړه او حتی چاقو لرونکی نوک تراش او قینچي له ځانه سره ولري. هېڅ حق نه درلود پنسل، قلم، کاغذ، کتابچه او نور ولري. د اخبار او کتاب لوستل منع وو. بندیانو په کوټه کې د ننه یو تربله د خبرو کولو حق درلود خو له کوټې نه بهر د تفریح په وخت کې هېڅ له بل سره خبرې نشوای کولای. د ټایپ، راډیو او موسیقي آلاتو لرل منع وو. یو لوډ سپیکر د هر بلاک په انګړ کې لګول شوی ؤ چې د راډیو کابل پروګرام او د محبس د قوماندانۍ ابلاغیې خپرولې. د بندیانو لپاره د خپلوانو یا پایوازو مقررات داسې وو چې خپلوانو او دوستانو خو په قطعي صورت له بندیانو سره ملاقات نشو کولی، بلکې په میاشت کې دوه ځل یعنې په هرو پنځلس ورځو کې د جمعې په ورځو د پایوازۍ په نوم په زرگونو نارینه او ښځینه د زندان په لویدیزه برخه کې سر خلاصی میدان کې به په یخنۍ او ګرمۍ، په سوزنده لمر او اورښت کې راټولېدل او پاک کالي او ځینې خوراکي توکي به یې خپلو بندیانو ته چې نوم، شهرت، د بلاک نمبر، منزل، د بندي کوټه د رالېږل شویو مالونو له فهرست سره په یوه پاڼه کاغذ کې لیکل کېده د یوه عسکر په لاس به بلاک ته استول کېدل. د هرې پایوازۍ په ورځ هر تن ته ۵۰۰ نغدې افغانۍ مجاز وې، ددې نه د زیاتو پیسو اجازه نه وه. د پایوازۍ په ورځو کې د هر منزل په دهلیز کې یو یا دوه تنه مؤظف کېدل ترڅو د بندي نوم د کاغذ له مخې په لوړ آواز واخلي او پاک کالي او نور اجناس او خپلې نغدې پیسې ترلاسه کړي.

تردې مخکې به بنديانو خپل خيرن کالي چمتو کول او کله به يې چې نوم واخيستل شو، د خيرنو جامو او نور سامان سره چې غوښتل به يې کورته يې واستوي له کوټې نه به د هليز ته راتللو او په همغه پاڼه کې به يې د پاکو جامو او نورو شيانو تسليمي ورکوله او لاسليک به يې کاوه، خپل خيرن کالي او نور سامان به يې په هماغه کڅوړه يا دستکول کې اچول او بېرته به يې هماغه عسکر ته ورکول چې له محبس نه بهر پايواز ته يې ورسوي. داسې هم کېدل چې د غلط فهمۍ يا بې پروايۍ له امله د يوه تن لباس بل بلاک ته تللی او يا د دوه پايوازيو د ورځو په منځ کې بندي د يوه بلاک نه بل بلاک ته تبديل شوی او د پايوازي په ورځ يې کالي او نور مواد چې ورته راليږل شوي دي بېرته مسترد شوي، کورنۍ يې په دې مفهوم چې بندي يې هرو مرو وژل شويدی د غم په تغر ناست دي. داسې هم کېدله چې د دوه پايوازيو په واټن کې يو شمېر بنديان پوليګون ته وړل شوي او ژوند يې ورختم شوی وي خو فاميل يې له هرڅه نه بې خبره د پايوازۍ په تاکلې ورځ يې ورته پاک لباس رااستاوه، کله يې چې لباس بېرته مسترد کېده نو هغه وخت يې کورنۍ پوهېدله چې بندي يې وژل شوی دی.

سياسي بنديان د سيد عبدالله قوماندان د ماموريت په وخت کې د خپلو ټولو حقه حقوقو څخه بې برخې وو او د محبس د کارکونکو لخوا له هغوی سره ډېر ناوړه او غير انساني چلن کېده. فليپ ارموکورا چې د ډاکتر نجيب د واکمنۍ په وخت کې يې څو ځله شخصاً په خپله له سياسي زندان څخه ليدنه وکړه، په هغه وخت کې د يو کال په موده کې ما کوم ژورنالست او يا د ملګرو ملتو کوم استازی په سترګو ونه ليد چې د څرخي پل ناوړه وضعه وګوري.

## د پل چرخي خپلواک قوماندان:

يو سړی چې منځنی قد، سپين رنګ او پريړ بريتونه يې لرل او د کندهارۍ پښتو په لهجه يې خبرې کولې تورن سيد عبدالله د بريد جنرال په بست کې د څرخي پله د زندان د قوماندان په حيث يې بشپړ صلاحيت او اختيارات درلودل، وهل ټکول

او ښکنځل د هغه همیشنۍ عادت ؤ ان چې د نشې په وخت کې به په خپل دفتر کې په کوم بندي په غوسه شو په خپله تومانچه به یې ډزې ورباندې کولې او وروسته به یې د هغه مړی د پولیگون په یوه کنده کې دفن کاوه.

سید عبدالله د حفیظ الله امین د خاصو ملگرو له جملې څخه ؤ. ټول افسران، واړه ضابطان او کارکوونکي له هغه نه سخت ډارېدل. که چا به دده د امر په تعمیل کې سستي، اهمال او تنبلي ښودله سخت به وهلو ټکولو او مجازات کاوه به یې. ظالم او بې رحمه انسان ؤ، ټل به په شرابو مست ؤ، له همدې امله ورنه ټول افسران او تر لاس لاندې واړه ضابطان سخت وېرېدل، او دده د امر په عملي کولو کې به یې ډېره لږه سستي هم نه کوله.

سید عبدالله په ټولو ټولیو، د هر بلاک په منزل کې خپل یو یا دوه اعتمادي باصلاحیته دلگۍ مشران په دندو گمارلي وو چې حتی افسران او د ټولۍ قوماندانان له هغوی څخه وېرېدل. دغو دلگۍ مشرانو مستقیماً له سید عبدالله سره سروکار درلود. له هغه جملې نه په دوهم بلاک کې د گل آغا په نوم یو دلگۍ مشر ؤ، دومره ظالم او بداخلاقه ؤ چې له ساتنمنانو او ځوانو بندیانو سره به په داسې حال کې جامې به یې ورنه ایستلې او په زور، ظلم او اکراه سره به یې وربانډې جنسي تیری کاوه.

سید عبدالله به هره شپه په شرابو مست ؤ، په نیمه شپه به ناڅاپه یوه اتاق ته د ټولۍ له قوماندان او د خاصو دلگۍ مشرانو له گروپ سره راننوت، ټول بندیان باید د درناوي لپاره ورته درېدلي وای. طبیعي ده چې د تلویزیون د پروگرام له پای ته رسېدو وروسته به یو شمېر بندیان ویده کېدل، کله به یې چې ولیدل چې یو شمېر بندیان ورته ولاړ دي او یو شمېر پراته او ویده دي غوسه به شو او ټول به یې د نیم ساعت لپاره په «کښېنې ولاړ سې» مجازات کول او بیا به یې خپل تقریر شروع کاوه. نوموړی په مارکسیزم او لیننیزم نپوهېده، په دې خوښ ؤ چې خلک دده گډې وډې او بې لاسو پښو بیانیې ته غوږ ونیسي، چوپ اوسي او لاسونه وپړقوي. ما یې څو ځله سترې کوونکې او تکراري بیانیه اورېدلې وه. د عبارت او جملو په بدلولو سره او اشراف زاده باندې یې ټول خاین دي، خلقي رژیم به ټول مخالفین او دښمنان له

خپلې مخې نه لرې کړي، مونږ کارگرانو او دهقانانو ته سوکاله ژوند برابروو، زمونږ شعار «کور، کالي ډوډۍ» دي، فیوډالان او ځمکه وال مو له واکه غورځولي دي، اخوانیان مو تښتولي او نابود کړي دي، د ثور انقلاب ورځ په ورځ ځواکمن کیږي، د انقلاب دښمنان له منځه ځي، که په افغانستان کې پنځه میلیونه شریف او زحمت کښه خلک پاتې شي نو هم د یوې پرمختللې جامعې د جوړولو لپاره بسنه کوي، که څوک غواړي او که نه مونږ د خپلې برچې او ټانک په دې ټولنه باندې حکومت کوو ... او د هرې جملې په پای کې به یې یو له دلګي مشرانو څخه لاسونه پړقول. بندیان هم مجبور وو چې لاسونه وپړقوي. کله کله به چې ډېر په غضب ؤ نو بندیان به یې د جامو په طریقه، ږیره، بریتو، قواره او نور شیانو په پلمه هم مجازاتول. زمونږ په کوټه کې زما په څنګ کې د محمد نعیم په نوم یو ځوان چې د ننګرهار ولایت د چپرهار د ولسوالۍ اوسېدونکی ؤ او د ورور د تېښتې په جرم زندان ته راوړل شوی ؤ، ورور یې ډاکتر پښتونیار د افغان ملت د ګوند غړی ؤ چې د ثور د کودتا په لومړیو وختو کې یې له خپل فامیل سره پېښور ته هجرت کړی ؤ، ځوان طبیعته، خندان او د ښه خوی او چلند خاوند ؤ. موسیقي یې ډېره خوښېدله، په خپله یې هم رباب واهه، په ننګرهار ولایت کې یې د جمعې او رخصتیو په شپو کې له خپلو دوستانو سره موسیقي اورېدله، پر هېڅ کوم سیاسي ګوند پورې تړلی نه ؤ، بریتونه یې ډېر نري او شخ شخ وو، ما ورته څو ورځې وړاندې مشوره ورکړې وه چې بریتونه لنډ کړي، ما ته یې په خندا وویل چې د بریتونو لنډول، اوږدول، ډبل او نري د محبس له مقرراتو سره څه اړه لري. زما همداسې نري او شخ بریت خوښ دي، ډېر وخت لا نه ؤ تېر شوی چې یوه شپه د سید عبدالله د محمد نعیم بریتو ته پام شو، ورته وې ویل: «ته ماویست ی؟» نعیم خوارکي چې له ماویست نه د مایوس مفهوم اخیستی ؤ ورته وویل: «نه صاحبه ولې به مایوسه وم، درې وخته ډوډۍ، بستره، کمپل او چېلکې رارسېدلي دي، چې په عامو ده پر مونږ هم ده.» سید عبدالله دومره ظالم او بې رحمه ؤ چې د نعیم په دې خبرو په غوسه شو او امر یې وکړ چې بریتونه یې اوباسئ او د سپکاوي په خبرو یې هغه تهدید کاوه. په بله شپه زمونږ په څنګ کې په مخامخ غتې کوټه کې د تومانچې د ډز آواز واورېدل شو، سبا ته معلومه شوه چې سید

العضویت سره مو مواخذه او ترلاسه کړې، چې د محضر په وړاندې په ورقه کې ثبت شول. د شپې د ۱۲ بجو په شاوخوا کې تالاشي او د شیانو لیکل پای ته ورسېدل، ډاکتر شاه ولي هغه مطالعه کړل او له لاسلیک کولو وروسته یې ماته وسپارل. د خبرو او ویناو ټول جریان زما د جیب په میکرو کیسته کې ثبت شوی وو. ډاکتر ته مې په خندا خندا وویل چې زمونږ د تالاشۍ کار خو پای ته ورسېد، اوس تاسو حق لرئ چې مونږ هریو تالاشي کړئ چې ستاسو له کوره وڅو، وروسته بیا د شکایت حق نه لرئ. ډاکتر چې خپل حواس له لاسه ورکړي وو، خوله یې وچه او شونډو یې پترې نیولې وو په موسکا یې ماته وویل مونږ نه اوس او نه بیا وروسته کوم شکایت لرو، د ښوونځي د وخت شوخیانې دې لاتراوسه نه دي هیرې کړي. ورته مې وویل: داسې ده چې د موسم (اقلیم) سره سم یوه جامه له ځانه سره راواخله چې یوځای سره ځو. ډاکتر د لباس اغوستنې کوټې ته ننووت او مونږ د دروازې خواته روان شوو. ډاکتر چې زمونږ څنګ ته راغی جامې یې بدل کړې وې خو بوټان ورنه هېر شوي وو، لاپې هم څپلکې په پښو وې چې د وارخطایۍ دلالت یې کاوه. ما یې چې پښو ته وکتل، نو خپلو پښو ته یې پام شو، بیا یې بوټان په پښو کړل او موټر ته راغی. د ډاکتر له اولادونو سره مو خدای پاماني وکړه او ډاکتر شاه ولي مو د کابل د ښارنځای پنځم نمبر کوټې ته وسپاره. د کابل نظارتخانه له مخکې نه د عادي جرمونو له تورنو څخه خالي کړای شوې وه او د نظارتخانې هر اتاق د سیاسي بندیانو لپاره مشخص شوی ؤ. کله مې چې ډاکتر شاه ولي نظارتخانې یا ښارنځای ته وسپاره نو د نظارتخانې آمر محمد ابراهیم ته مې سپارښتنه وکړه چې ډاکتر صیب زما د همصنفیانو له ډلې څخه دي، د نظارتخانې په دننه کې د هغه د خدمت د تأمین په برخه کې ورسره مرسته وکړه.

ډاکتر شاه ولي ته مې د هغه د نیولو او د هغه د کور د تالاشي کولو له امله د خپلې راسپارل شوی دندې معذرت وړاندې کړ، څو افغانۍ مې چې په جیب کې وې هغه ته وړاندې کړې. ډاکتر خوښ شو، مننه یې وکړه، پیسې یې وانه خیستې، یو دانه سګرټ یې وغوښت. ما یو ډبې سګرټ او یو اورلګیت ورکړ او خدای پاماني

عبدالله له بندیانو څخه یو تن افسر ته چې د کاپیسا ولایت د تګاب د ولسوالۍ اوسیدونکی ؤ ښکنځل کړی وو او هغه هم ورسره لفظي مشاجره کړې وه په لاس یې په تومانچه ویشتلی ؤ او بندي یې ټپي کړی ؤ.

وایي چې خربوزه له خربوزې رنګ اخلي، د دوهم بلاک د ټولی قوماندان دوهم بریدمن نورالدین هم د سید عبدالله د خوی تقلید کاوه، کله کله به یې بندیان توهینول او وهل ټکول به یې.

## په زندان کې د سلطنتي خاندان د کورنیو حالت:

د دوهم بلاک په لویدیزه خوا کې د سیاسي زندان لومړی بلاک ؤ، د اول بلاک د اول منزل د ننوتو په ځای کې د محبس د قوماندان دفتر ؤ او ورسره پیوست د تجرید شویو بندیانو تپه تیاره کوټې وې. په دوهم منزل کې نارینه بندیان او په دریم منزل کې ښځینه سیاسي بندیانې ځای پرځای شوې وې. یو شمېر محصلینې او استادانې د اخواني، ماویست او پرچم ډلې په نوم او د سلطنتي خاندان یو شمېر کورنۍ دغلته ځای پرځای شوي وې. بندیان به چې له لومړي بلاک نه دوهم بلاک ته بدل او انتقالېدل، دا آوازه یې خپره کړې وه چې سید عبدالله د شپې د ناستې د محفل له ګروپ او د شرابو د پیک له ملګرو سره، کله چې د شرابو په نشه کې مستېږي، ښکلې ښځې او نجونې په نیمه شپه په بېلابېلو پلمو د پلټنو په نوم خپل دفتر ته راغواړي او ډېر وخت وروسته یې په داسې حال کې چې وېښتان یې ګډوډ او پریشانه وي دوباره دریم منزل ته راولي. کیسه کوونکو د خپلو سترګو لیدلی حال داسې څرګندولو: چې د ښځو د پریشانه مخونو او وېښتانو داسې معلومېدله چې په زور او جبر سره په نیمه شپه کې ورباندې جنسي تیری ترسره کېده. څه موده وروسته دوه تنه ښځې د ناروغۍ په نوم د زندان په روغتون کې بستري شوې او سقط جنین یې کړی ؤ. همدا آوازه او افواه په ښار کې د خلکو غوږونو ته هم رسېدلې وه. د ۱۳۵۸ کال د مرغومی له شپږمې وروسته د محمدزایانو (۸۰) تنه ښځې له زندان نه خوشې شوې او د نړیوال سره صلیب په واسطه په خارج کې خپلو خپلوانو ته واستول شوې.

## له پخو وریجو څخه د سطرنج د دانو جوړول:

په اونۍ کې دوه ځل به د غرمې په خوراک کې بنګله دیشۍ وریجې حواله کېدلې، چې اکثره بندیانو به نه خوړلې. له چایو سره به یې د سیلو په ډوډۍ ګوزاره کوله. زمونږ د بلاک دوه تنو بندیانو ابتکار کړی ؤ چې وروسته په ټول بلاک او ان چې په ټولو بندیانو کې یې رواج وموند او بندیانو ته یوه مشغولا پیدا شوه، داسې چې لومړی به یې وریجې په یوه ټوټه کې واچولې او دومره به یې په ډبره وټکولې چې د حلوا په شان مواد به ورنه جوړ شول، د هغې نیمایی به یې بیا د دیګونو له تورکو (سیاهي) سره چې له مخکې نه به یې کم کم راټول کړي وو ګډول، بیا به یې ورنه په زړه پورې د سطرنج تورې او سپینې دانې جوړولې او په سیوری کې به یې وچولې. د سطرنج تخته به یې د کاغذ د کارتن له ګتې څخه چې د سګرټو څخه په لاس راتله، له کانتین نه به یې په ډېرو کمو پیسو رانیوله د پنسل او تور قلم په واسطه سره به یې هغه په رنګه ډول جوړوله او ښې څنډې به یې ورته په لاس جوړولې. پنسل، قلم، چاقو او د ږیرې پاکې د ممنوعه شیانو له جملې څخه وو خو بندیانو د ورځو او میاشتو په تېرېدو سره د محبس د عسکرو په واسطه د پیسو په بدل کې برابرول او د شپې په وخت به چې کله د افسرانو ګرځېدل او څارل پای ته ورسېدل او د تالاشیو وېره به ختمه شوه د سطرنج د تختې په جوړولو به یې پیل کاوه. د سطرنج د یوې تختې جوړولو یوه اونۍ وخت اخیست ترڅو ټول اړوند مواد یې جوړ شي. ورو ورو په ټول زندان کې کاغذي سطرنجونه او د وریجو ګوټونه (دانې) رواج وموند. کله چې له زندان نه خوشې شوم ما هم د سطرنج یوه په زړه پورې تخته او یوه آبګرمی د یادګار په ډول له ځانه سره کورته یوړه.

## د سیاسي بندیانو ترکیب:

په لومړی ګام کې د محمد داود د رژیم او د سلطنتي کورنۍ غړي، جنرالان، د پارلمان وکیلان او لوړپوړی مامورین زندان ته وسپارل شول. د اخوانیانو په نوم یو شمېر کسان چې مولانا عبدالرب رسول سیاف هم په هغوی کې شامل و د سیاسي

بندیانو په ترکیب کې وو. همدا راز یو شمېر اسلامي بنسټ پالان چې د محمد داود په رژیم کې د لغمان، پنجشېر او ارگون په ښېښو کې نیول شوي وو، یو گروپ د ترهگرو او بنسټپالو په نوم چې د محمد داود د کابینې د پلان د وزیر د تتل په پېښه کې نیول شوي وو، زندان ته را وستل شوي وو چې سرغنه یې معلم مرجان ؤ.

د سیاسي بندیانو عمده برخه پوځي افسران، ملکي مامورینو، محصلینو، محصلاتو، استادانو، ښوونکو، ډاکترانو، ځوانانو، د پرچم ډلې غړو او ډېر شمېر سترو ځمکه والو، پانگه والو، ملي سوداگرو، عالمانو، روحانیونو، روښاندو، لیکوالو او د سیاسي ډلو او احزابو د غړو پیاوړو شخصیتونو خپلوانو تشکیلوله.

ناویلې دې پاتې نه وي چې د خلق ډلې دوه سوه تنه چې د ډاکتر زرغون په گروپ کې شامل وو، او یو شمېر د گوتو په شمېر پاکستانیان د جاسوسانو په نوم د سیاسي بندیانو په ترکیب کې شمولیت درلود.

## اگسا خپل کارکوونکي هم زندان ته اچول:

د ۱۳۵۸ کال د وري په میاشت کې یوه ورځ د سهار په ۸ بجو چې په سلگونو بندیانو د رفع حاجت د غرفو په وړاندې لیکه جوړه کړې وه، سترگې مې د اگسا په کارکوونکي جلال الدین ولگېدې چې د منتظرینو په لیکه کې د زندان په کالیو کې ولاړ دي. فکر مې وکړ چې د کومې خاصې دندې د ترسره کولو لپاره به د سیاسي بندي په نوم دنده ورسپارل شوې وي، لومړی خوشحاله شوم چې ښایي زما د دوسیې د حل او فصل لپاره به زما مرسته هم وکړي. د سترگو په اشاره او د سر په خوځولو مو یو د بل حال وپوښته او متقابل درناوی مو پرځای کړ او په دې هم پوه شوم چې د دوهم بلاک په لومړۍ منزل په څلورم نمبر کوټه کې چې زمونږ د کوټې مخامخ وه بندي شوی دی. د تفریح په پای کې کله چې خپلو کوټو ته روان وو ځان مې څنگ ته ورساوه څنگ په څنگ روان شوو په ډېر کرار غږ یې په لنډ ډول داسې کیسه راته وکړه چې پرون یې یو سر تړلی مکتوب خاص او راساً د محبس د قوماندان په نوم. ـ اگسا نه راوړی ؤ. کله چې قوماندان مکتوب لولی، د دوهم بلاک د تولی قوماندان ځان ته

راغواړي، جلال الدين ورته سپاري او ځانګړې هدايت ورکوي. همغه وه چې دوهم بلاک ته يې راولي، د زندان کالي او بستره ورکوي، يونيفورم يې په قرنتين کې قيد کوي او دې په خپله په څلورم نمبر کوټه کې بندي کوي. جلال الدين چې ډېر ناهيلي او اندېښمن ؤ ويل يې چې هېڅ ګناه او قصور نلري. زه يې هم د کيسې په اورېدلو ډېر خوابدی شوم. د دوه مياشتې وروسته کله چې د خلاصون په نوم له دوهم بلاک نه خارجېدلو، د خوشې کېدو مبارکي مې ورته وويله، خو هغه ويل: «فکر نه کوم چې خوشې شوی وم، زما او ستا په منځ کې دې همدا نښاني وي چې که رېښتيا آزاد شوی وم نو د راتلونکي پايوازۍ په ورځ درته زندان ته سګرټ او تازه ميوه راوړم، او که د فاميل لخوا مې پاک کالي او اجناس زندان ته رااستول شوي وو، نو عمر مې تا ته دربخښم او زه به د پوليګون کندو ته لېږل شوی يم.» راروانه جمعه چې د پايوازۍ ورځ وه، د ده نوم ته ډېر متوجه وم، واقعاً چې زيښتيا يې ويلي وو، له کوره ورته جامې او نور شيان رالېږل شوي وو، نوم يې ورته په لوړ آواز واخيست، د کوټې د ملګرو دوه تنو بنديانو چې د هغه د ځوانۍ د غم او ياد په وير يې اوښکې تويولې جواب ورکړ چې جلال الدين خوشې شوی دی او د تل لپاره خوشې شوی دی.

## د آزادۍ او خوشې کېدو لستونه!!!

په اونۍ کې يوه يا دوه شپې به له ډوډۍ خوړلو وروسته ځانګړې دلګۍ مشران زمونږ بلاک ته راتلل د يو، دوه يا درې تنو نومونه به يې اخيستل او ويل به يې خپل سامان له ځانه سره راواخلئ تاسو خوشې شوی ياست. د دې ښه خبر په اورېدو سره به په بلاک کې شور جوړ شو چا به د خپل کور د ټيلفون نمبر ورکاوه او چا به د خپلو دوستانو د ټيلفون نمبر ورکاوه او ويل به يې ورته چې د دوی د روغتيا او سلامتيا خبر د دوی کورنيو ته ورکړي، خو په تأسف سره چې د پايوازۍ په ورځو به ورته له کور، کالي او نور شيان رالېږل کېدل، نو معلومېده چې بېچاره ګان په ابدي خوب ويده شوي دي. تردې وروسته به چې دلګۍ مشران د خوشې کېدو له لست سره کوټې ته راتلل نو زمونږ اندامونه به رپېدل چې د کوم اجل نيولي نوم به قرعه کې راوځي. د

محبس د قوماندانۍ اداري د شپې طرزالعمل ورځې ته بدل کړ، هره ورځ به له ټولو کوټو څخه بنديان راجمع کېدل او له بلاک نه بهر به د شپې تر وختـه پورې ساتل کېدل او د شپې د ډوډۍ له وخت نه وروسته به يې دغه بېچاره ګان لاس تړلي او په تړلو سترګو پوليګون (وژل ځای) تـه سپارل کېدل او ژوند به يې پای ته رسېده او د پايوازۍ په ورځو به ورته له کوره کالي او نور شيان رااستول کېدل. له دې وروسته به که په شپه او يا ورځ کې د خوشې کېدو لست لوستل کېده، نو مونږ ټول پوهېدو چې د خوشې کېدو لستونه نه بلکې په مرګ د محکومېدو لستونه دي. که احياناً کوم بندي په رېښتيا هم خوشې کېده يا به د پلټنو لپاره د قوماندان دفتر ته غوښتل کېده نو له هغه خوارکي سره به موهم د خدای پامانۍ پرځای د مغفرت دعا ورته کوله. د زندان اداره دومره وحشتناکه او ويروونکې وه چې هېڅ باور نه کاوه چې يوه شپه او يا يوه ورځ به ژوندي پاتې کېږي او کـه نه. د آزادۍ له لستونو سره ټولو بنديانو حساسيت پيدا کړی ؤ، د ۱۳۵۸ کال د مرغومی تر شپږمې پورې په اونۍ کې څو ځله د خوشې کېدو د لستونو په اورېدو سره بنديانو خپل ځانونه د پوليګون قربانيان شمېرلي وو، د بنديانو زيات شمېر له همدې امله روحي او رواني تکليف سره مخامخ شوي وو.

## په پل چرخي زندان کې د له ييزه وژنه:

مخکې مو يادونه وکړه چې د سياسي بنديانو په جوړښت کې د اسلامي احزابو يو شمېر بنسټپالان هم شامل وو چې د محمد داود له رژيم راپديخوا په زندان کې ؤو. د هغوی د ځينو پرخلاف د عدلي محکمو پرېکړه هم صادره شوې وه او د ځينو دوسيې په دوران کې وې. يوه ورځ له غرمې وروسته په دوه بجو قوماندان سيد عبدالله د ۳۰ تنو يو لست له ځانه سره د دوهم بلاک لومړی منزل ته راوړ او د يو يو تن نوم يې واخيست. مونږ هم په خپلو ځايونو کې اورېدل، دا ټول ۳۰ واړه د لومړی منزل بنديان وو. د قوماندان لخوا ابلاغ شوه چې ټول خپل سامان له ځان سره واخلي او هغه سرويس موټر ته چې د بلاک د دروازې مخې ته ولاړ دي ورشي، په کې سپاره

شي ترڅو ښار ته ولېږدول شي. ټولو بنديانو په ډېره خوشحالۍ سره په يو څو دقيقو کې خپل سامانونه راواخيستل او يو په بل پسې د بلاک د دروازې په طرف روان شول. په دې جمله کې يو ښوونکی هم ؤ چې ما ښه پېژندلو. زړه مې غوښتل چې په کابل کې د خپل کور آدرس د بلاک د کړکۍ له پنجرې نه ورکړم ترڅو زما د ژوند او سلامتيا خبر زما کور ته ورسوي خو هېڅ امکان پيدا نشو ځکه قوماندان په دهلېز کې ناست ؤ، يو يو يې چې د موټر په طرف تلل څارل يې او زمونږ د کوټې دروازه له بهر نه قفل شوې وه. ما د خپلې کوټې د کړکۍ د پنجرې نه هريو ته کتل چې په ډېره خوښۍ د موټر خواته تلل. په دې جمله کې يو تورن بندي سيد جعفر د سيد افگن زوی هم شامل ؤ او ورور يې سيد اکبر چې دواړه په يوه فقره کې بنديان وو ونه ليدل شو. فکر مې وکړ چې ښايي د هغه د بند موده نه وي بشپړه شوې. سيد جعفر او سيد اکبر سره ورونه او د کندز ولايت د حضرت امام صاحب د ولسوالۍ وو. ډېر وخت لا نه ؤ تير شوی چې ټول بنديان د موټر خواته راجمع شول. ټول يې يو د بل شاته ليکه په ليکه درولي وو، د هغوی سامانونه يې په موټر کې واچول او د دوی لاسونه يې شاته د ټيلفون په تارونو کلک تړل او سترگې يې ورته پلستر کولې. په دې وخت کې د هغوی غالمغال پورته شو، عسکرو به چې هريو موټر ته خېژولو هغه به ځان ببېرته په ځمکه راغورځولو او ويل به يې چې مونږ ستاسو د وخت مجرمين او متهمين نه يو، په مونږ د محکمې پرېکړه شوې، مونږ ستاسو په رژيم کې د کوم عمل مرتکب شوي نه يو مونږ ولې وژنئ؟ مونږ هېڅ نه دي کړي. دې غالمغال او خبرو څو دقيقې دوام وکړ د اول منزل بنديانو د خپلو کوټو د کړکيو له پنجرو څخه دا صحنه د سر په سترگو ليدله، چيغې او فريادونه يې اوريدل چې ناڅاپه د ټوپکو د ډزو غږونه او د شهادت د کلمې آوازونه په غوږونو واورېدل شول. عسکرو ورباندې ډزې کولې او ځای پرځای وژل کېدل. لاس تړلو او په سترگو پلستر شويو بنديانو يو خوا او بله خوا منډې وهلې، کله به يې له ډېرين ديوالونو سره ډغره خوړله، کله به د ديوال ترڅنگ کندو ته غورځېدل او له پاسه به ورباندې ډزې کېدلې، چيغې او فريادونه به يې له خولې وتل. سخت زړی او بې رحمه قوماندان به غږ کاوه چې: ويې ولئ او ويې وژنئ

دا خاینان. » نیم ساعت وروسته فریادونه او زګیروی او ډزې پای ته ورسېدې، ۳۰ تنه بندیان په خاورو او وینو کې ورغړېدل او په ډله ییز ډول په شهادت ورسول شول. د بندیانو د ټولو کوټو دروازې لا د مخه نه له بهر نه قلف شوې وې، جسدونه یې له ځمکې پورته کړل او ترماښامه پورې یې د هغوی وینې د ځمکې له مخ، ژورو ځایونو او دیوالونو څخه پاکې کړې. د دوهم بلاک د تفریح او رفع حاجت وخت ضایع شو، بندیان اړ وو چې له پلاستیکي کڅوړو نه کار واخلي. فکر کوم چې په ټوله نړۍ کې به داسې ډله ییزه وژنه په رڼا ورځ د سیاسي زندان په دننه کې بېلګه او سابقه نه وي لرلې.

## د زندان د قوماندان سید عبدالله ټپي کېدل:

سیداکبر د خپل ورور مرګ په ډله ییزه وژنه کې لیدلی ؤ، احساسوله یې چې یوه ورځ د خپل ورور له سرنوشت سره مخ کېږي، له ځان سره یې هوډ کړی ؤ چې له خپل مرګ نه وړاندې له سید عبدالله قوماندان نه د خپل ورور او ټولو ورونو غچ واخلي. په همدې موخه یې یوه چاړه پیدا کړه او ... په هره بڼه چې وه لاس ته راوړې وه او د کینې پښې په پنډۍ پورې یې په سپینه ټوټه باندې تړلې وه او ټوټه یې په داسې ډول له پنډۍ راتاوه کړې وه چې داسې بریښېده چې ګنې د چپې پښې په پنډۍ یې دانه او ټپ دی او د پانسمان او درملنې لاندې ده. دا عملیه یې پوره یوه میاشت تمرین کړې وه چې د اړتیا په وخت کې چاړه د بریښنا په شان را واخلي او په مقابل لوري ګوزار وکړي.

د ډله ییزې وژنې نږدې یوه میاشت تیره شوې وه چې یوه ورځ له ماسپښین نه وروسته د بندیانو ټولې کوټې له بهر نه قلف شوې، په عادي حالت کې به د دروازو په خوله کې یو یو پهره دار ولاړ ؤ ترڅو بندیان له یوې کوټې نه بلې کوټې ته تګ راتګ ونکړي او یا د ناروغۍ او رفع حاجت په پلمه له خپلو کوټو څخه راونه وځي. کله به چې په ناڅاپي ډول دروازې قلف کېدلې، نو په تجربه رسېدلې وه چې د هغې ترشا کوم غیر عادي او فوق العاده حالت منځ ته راځي. داځل هم فوق العاده حالت

ؤ ، سید عبدالله قوماندان له څو تنو افسرانو او یو شمېر وسله والو دلګی مشرانو سره د اول منزل دهلېز ته راننوت او د دهلېز په څلور لاري کې چې د بلاک په نیمایي کې یې موقعیت درلود په چوکۍ کښېناست او د یو لست په ویلو یې شروع وکړه. د دهلېز څلور لاري زمونږ له کوټې څخه د ۳ - ٤ مترو په فاصله موقعیت درلود ، مونږ ټول د کوټې د دروازې او د کړکۍ د پنجرې خواته نږدې شوی وو چې د سید اکبر ولد شیرفګند نوم مې واورېد. لکه څرنګه مې چې انګېرله له ځانه سره مې وویل: « خوارکی د خپل ورور په سرنوشت اخته شو. » یوڅو دقیقې د نوم لوستلو لړۍ تم شوه او د سید اکبر ډېر خفیف غږ تر غوږو کېده خو په کلماتو یې سړی نه پوهېده چې قوماندان ته یې څه ویل ، کله یې چې له څنګ نه تېرېده د خپلې یوې میاشتې تمرین یې عملي کړ ، په چاړه یې په قوماندان برید وکړ ، د چړې دوه درې ګوزارونه یې د هغه په خېټه ، سر او ملا ورحواله کړل او په زوره یې ویل: « خبیثه قاتله کلمه دې تېره کړه. » له دې سره یوځای قوماندان چیغه کړه او ویې ویل: « آه ، ویې وژلم ، ډزې وکړئ. » او په ځمکه وغورځېده. په دې وخت کې په دهلېز کې منډې رامنډې شروع شوې چې ټیپي یې په چټکۍ سره روغتون ته لېږداوه او په دهلېز کې څو ځانته ځانته ډزې وشوې چې د سیداکبر او نورو څو تنو بندیانو فریادونه واورېدل شول. وایي چې « تصمیم د بري لومړی شرط دی. » سید اکبر په خپل هوډ کې بریالی شوی ؤ ، قوماندان یې سخت ژوبل کړی ؤ او له خپل مر ګ نه وړاندې یې هغه د روغتون په لاره روان کړی ؤ ، او دی په خپله له خپلو څو تنو نورو ورونو سره د ټوپک په ډزو په شهادت رسېدلی ؤ ، اروا دې یې ښاده وي.

سید اکبر په خپله زړه وره مېړانه پاتې زندانیانو ته د دغه میرغضب له ډله ییزې وژنې څخه نجات ورکړ.

## د زندان نوی قوماندان او په اوضاع کې نسبي بدلون:

د سید عبدالله له ټیپي کېدو او روغتون ته د هغه له لېږدولو وروسته ، تورن غلام رسول د زرهدار د څلورمې قوې افسر چې د تره کی له پلویانو څخه ؤ د زندان د

قوماندان په حیث د سید عبدالله پرځای وټاکل شو او خپله دنده یې اشغال کړه. د هغه د قوماندانۍ په مهال د زندان حالت له یوه سره بدلون ومونداو ځینې آسانتیاوې راڅرګندې شوې. د بیلګې په توګه: ټول بندیان د سهار له ۷ بجو څخه د شپې تر ۸ بجو پورې آزاد وو چې د بلاکونو په انګړ، په داخل د بلاکونو کې، په کوټو کې، له یوې کوټې نه بلې ته، له یوه منزل نه بل منزل ته له یوه بلاک نه بل بلاک ته تګ راتګ وکړي، له خپلوانو او دوستانو سره خبرې وکړي، یو له بل سره چای وڅښي، په خپلو منځو کې قطعه بازي او سطرنج وکړي، نامنع شوی اخبارونه او سیاسي کتابونه ولولي، آزاد سپورت وکړي، هروخت چې ضرورت وي د رفع حاجت لپاره کناراب ته لاړ شي، غسل وکړي، جامې ووینځي، بسترو او کمپلو ته لمر ورکړي، د افسرانو او دلګۍ مشرانو فشار او وهل ټکول ښځي محدود کړای شو، او یوازې په ځینو مواردو کې چې هغه هم د مسئولو افسرانو په هدایت سره غاړه غړوونکو ته مجازات ورکول کېدل چې هغې هم ځای درلود.

ښځایه تالاشۍ او څارنې محدود کړای شوې، له دغو آسانتیاو څخه په استفادې سره نوک تراش، پنسل، کاغذ، قلم له بندیانو سره په څرګنده توګه مجاز وو. داسې هم ولیدل شول چې ځینې بندیانو به په پرتوګ او خیرنو جامو کې خپلو خپلوانو او کورونو ته لیکونه استول او له هغوی نه به یې په همدې طریقه خطونه ترلاسه کول او په دې ترتیب سره بندیانو په بهر کې له خپلوانو او دوستانو سره تماس او اړیکې ټینګولې. همدا راز څو تنو بندیانو په شریکه سره یوه پایه کوچنۍ راډیو له مکروفون او غوږۍ سره ترلاسه کړې وه چې په نوبت سره یې د راډیو افغانستان او نورو رسنیو او معتبرو آژانسونو له لارې یې په پرله پسې توګه خبرونه اورېدل او له غوږۍ (ګوشی) په واسطه مو په نوبت سره په بستره کې او تر کمپلې لاندې په خاموشۍ سره خبرونه اورېدل او بیا به مو راډیو بل ته انتقالوله، چې په دې ترتیب سره به بندیان په هیواد کې له داخلي اوضاع او د نړۍ له سیاسي اوضاع څخه خبرېدل. که څه هم د خوراک په سیستم کې او د پایوازۍ په مقرراتو کې کوم بلون رانغی خو سره له دې هم د تېرو په پرتله ډېرې آسانتیاوې د سیاسي بندیانو لپاره رامنځ ته شوې.

## د مصئونیت، قانونیت او عدالت شعار:

مخکې مو وویل چې حفیظ الله امین په خپل نوبت وسله وال پاڅون په لاره واچاو او د محمد داود رژیم سقوط وکړ، له همغې ورځې یې ځان د تاج او تخت یوازینی حقدار گانه، خو دې مرام ته د رسېدو په لاره کې ورته خنډونه پراته وو، لومړی دا چې کارمل او د هغه پلویان باید د هیواد له سیاسي سیستم څخه اوباسي او د هغه پوځي او گوندي قوت نابود کړي او بیا خپل وفادار کادرونه د حزب او پوځ په مهمو پوستونو کې ځای پرځای کړي او همداسې یې کړي وو. یوازې د دې فرصت په انتظار کې ؤ چې خپل استاد په کومه داسې طریقه له صحنې څخه اوباسي چې نسبتاً خاموشه او بې غږه غوره وي. له بله پلوه روسان په دې اند وو چې امینَ د تره کی په واسطه د سیاست له صحنې او د افغانستان له واکمنۍ بهر کړي او د کارمل او تره کی دلې سره پیوند کړي، خو لکه څرنگه چې ولیدل شول تره کی ونکړای شول چې د روسانو پلان عملي کړي بلکې په دې لویه کې په خپله د خپل وفادار شاگرد په پنجو کې راگیر شو. وروسته له ۱۷ ورځو یې د بالنبت په ذریعه د هغه ژوند ته د پای ټکی کېښود او پرته له کوم مقاومت او اندېښنې څخه له دې کبله چې د حزب په مشرتابه او اردو کې مهم او حساس پوستونه یې په لاس کې وو د قدرت په گدۍ کښېناست. د دې لپاره چې د تېر وخت وژنې، ظلمونه او نیونې د خلکو په نظر کې د تره کی په غاړه ورواچوي او ځان ته یې برائت ورکړی وي پراخ تبلیغات یې د هغه د بې کفایتۍ، تولنیزو ظلمونو او د هغه د شخصیت پرستۍ اعمالو په اړه په لاره واچول.

امین د مصئونیت، قانونیت او عدالت له فریب نه ډک شعارونه پورته کړل او یو شمېر بندیان یې په مرکز او ولایتونو کې خوشې کړل او د سیاسي بندیانو د دوسیو د حل کولو لپاره یې په مرکز او ولایتونو کې له فریبه ډک او نمایشي کمیسیونونه په کار وگمارل، زندانونه یې تفتیش او وجاجول ترڅو ولیدل شي دده د دښمنانو او کار له مخالفینو څخه کوم اشخاص لا ژوندي پاتې دي.

د همدې شعار لاندې که یو یا دوه بندیان خوشې کېدل نو له راډیو او تلویزیون

مې ورسره وکړه. د محضر پاڼه مې له یوې توپانچې، کتابونو او نغدو پیسو سره د قوماندانۍ مؤظف شخص ته وسپارله او رسید مې ورځنې واخیست، فکر مې کاوه چې دنده به مې پای ته رسېدلې وي. د امنیې د قوماندان څنګ ته ورغلم، ترڅو د کار په اړه راپور ورکړم او رخصت شم، خو وظیفه مې سرته نه وه رسیدلې. د (۹) تنو له جملې څخه تردغه دمه (۳) تنه نور محمد تره کی، ببرک کارمل او ډاکټر شاه ولي نظارتخانې ته راوستل شوي وو او نور ګروپونه لا قرارګاه ته نه وو رارسیدلي.

## د حفیظ الله امین نیول کېدل او د پاڼې ژول:

حفیظ الله امین په خټه پښتون، په قوم خروټی، د کابل د پغمان د ولسوالۍ اوسیدونکی ؤ. لوړې زده کړې یې د امریکا په ایالتونو کې ترسره کړې وې. پلار یې د کابل ولایت د زندان مامور ؤ. مشر ورور یې عبدالله امین پوځي افسر ؤ، د محمد ظاهرشاه د سلطنت په وخت کې د کوم جرم له امله له اردو څخه ګوښه کړای شوی ؤ، د قطغن د ولایت رئیس تنظیمه چې په قوم خروټی ؤ او د محمد هاشم خان د صدارت په زمانه کې یې د ناقلینو په واسطه د قطغن ولایت د کرنیزو ځمکو په جوړولو او آبادولو کې ډیر لوړ خدمتونه ترسره کړي وو. وارثان یې په کندز کې میشت وو، د هغوی له جملې څخه محمد سرور ناشر چې یو مخور شخصیت او د کندز د سپین زر شرکت رئیس ؤ او د محمد ظاهرشاه په دربار کې یې ډېر اعتماد درلود.

عبدالله امین له پوځي دندې څخه له ګوښه کېدو وروسته په کندز کې د ناشر څنګ ته ورغی، لومړی په سپین زر شرکت کې د سکرتر او بیا یې د شرکت د اداري مدیر په حیث کار کاوه. په رسمي دنده سربېره د ناظر په صفت یې د ناشر د ځمکو، دوکانونو، سرایونو او سینماګانو سرپرستي هم کوله. ما هم له کال ۱۳٤۳ څخه تر ۱۳٤۹ پورې په کندز کې ماموریت درلود، له عبدالله امین سره مې ښې او دوستانه اړیکې وې. حفیظ الله امین چې د لوړو زده کړو له ترسره کولو وروسته له امریکا څخه کابل ته راغلی ؤ، د کابل د ابن سینا د لیسې د مدیر په توګه یې دنده ترسره کوله. د خپل ورور د لیدو لپاره به په کال کې یو یا دوه ځل د کندز ولایت ته راته. په

سره د مرکو له لارې تبلیغات کېدل، او په عوض کې یې په سلګونو کسان زندان ته راوستل کېدل او په لسګونو نور وژل کېدل او تر خاورو لاندې کېدل. ما ته په خپله چې په زندان کې وم په دوهم بلاک کې د خوشې کېدونکو او تازه بندیان کېدونکو او وژل کېدونکو د ګراف توپیر په ښکاره معلومېده.

## ۶- د حفیظ الله امین د (۱۰۱) ورځو تخت او تاج:

کله چې د ۱۳۵۸ کال د وري د میاشتې په ۲۵ مه په رسمي ډول د حزب او د انقلابي شورا د رئیس په حیث د واک په ګدۍ کېښناست، د پل چرخي په زندان کې سیاستوالو دا ډول تبصره کوله چې سیاسي بندیان د مرګ او یا عمري بند په جزا محکومېږي او یا دا چې امین به ډېر ژر د قدرت له څوکۍ ښکته کړای شي. د هغه د واکمنۍ ورځې، اونۍ او میاشتې یې شمېرلې، لومړۍ میاشت د مارشونو، غونډو او شعارونو په جوړولو تېره شو، په بله میاشت کې دا خبر خپور شو چې امین د جمهوري ارګ دربار د تاج بېګ غونډۍ ماڼۍ ته انتقال کړ. د تاج بېګ غونډۍ قصر امان الله خان د ځان لپاره جوړ کړی ؤ، خو محمد نادرشاه او د هغه زوی محمد ظاهرشاه دغه ماڼۍ خوشې پرېښې وه. امین د روسانو په مشوره هغه بیا ورغوله او رنګ او روغن یې ورکړ او خپل فامیل یې هلته ولېږداوه. روسانو په دې برخه کې یو پلان هم درلود چې لومړی باید د امین جمهوري دربار د ښار له دننه (د ښار زړه) ښکته لرې او څنډې ته شي ترڅو د روسانو حمله او له مخکې نه ترتیب شوی پلان عملي او د اخ و ډب او د ډزو د تبادلې له امله ډېره غوغا او لانجه رامنځ ته نشي، ځکه روسان له وړاندې نه پوهېدلي وو چې آخر به امین د ګاونډي هېواد لکه پاکستان په مرسته او ملګرتیا چې د کمونیزم د پراختیا ډېر خطر احساسوي له دوی ښکته مخ ګرځوي او لکه د انورالسادات د مصر د رهبر په شان چې د جمال عبدالناصر په برعکس یې روسان په یوځل له مصر نه وایستل او د امریکا متحده ایالاتو ته یې مخه کړه، امین هم داسې یو پلان درلود، ځکه روسانو د امین په پرتله کارمل ته ترجیح ورکړې وه او امین ته هم د روسانو پلان روښانه ؤ، خو دواړو خواو

له ځانګړې ډیپلوماسۍ او چل څخه کار اخیست. روسانو به امین کله د تره کي د پلویانو د کود تا له خطر څخه ویرولو، کله به یې د ختیځ او لویدیز ګاونډیانو له برید څخه او کله به یې د افغانستان د تجزیه کېدو د خطر خبره د امین له غوږه تېروله. تل به یې د پرچمیانو په دننه کې د فشار د وسیلې په توګه د ورانکارۍ ګروپونه تنظیمول او امین به یې همېشه دې ته هڅاوه چې دده د ځان د ساتنې لپاره په کار ده چې یوه میکانیزه مجهزه قطعه د جمهوري مانۍ (تاجبېګ تپه) چاپېره ځای پرځای شي، خو امین په دې کار کې له ځنډ نه کار اخیست ترڅو خپل پلان د پاکستان له لارې او په پاکستان کې د میشتو اسلامي تنظیمونو د اپوزیسیونې ډلو او یا هم د لویدیز او د امریکا د متحده ایالاتو د بشپړ ملاتړ له لارې لکه د انورالسادات په شان عملي کړي، خو په دغو حالاتو کې لویدیز سره د امین پټې خبرې او تفاهم له ستونزو خالي نه ؤ، همغه وه چې داخلي وضعه په خاص ډول د کابل د ښار وضعه ورځ په ورځ خرابېدله، دلته او هلته ورانکاري عملیات زیات شول، لکه چې د همدې ورانکارۍ د عملیاتو په لړ کې یوه ورځ اسدالله امین چې د امین وراره او زوم ؤ او د کام د اداري رئیس ؤ هم ټپي شو. د ګارډ قوماندان یعقوب هم زخمي شو، دوه مقتدر پوځي اشخاص چې امین ته ډېر نږدې کسان وو په ګوند کې د دننه تخریبکارو ډلو لخوا ټپیان شول، او په سلګونو کوچنۍ او ستر عملیات د رژیم پرضد په شاوخوا کې د فشار د وسیلې په توګه په لاره اچول شوي وو. تردې چې امین په موقتي توګه د سره ګارډ پوځي قطعې ته د ځان د ساتنې لپاره د ننوتو اجازه ورکوي. د سره ګارډ یوه دستوري پوځي قطعه د تاج بېګ غونډۍ مانۍ ته نږدې ځای پرځای شوه.

د امین د واکمنۍ دریمه میاشت د کورنیو شخړو د خاموشولو او د مخالفینو په ټکولو کې تېره شوه. ډېر لاس او پښې یې ووهلې ترڅو امین د روسانو پرضد خپل پلان عملي کړي، لکه د لیونو یې په دې لاره کې منډې ووهلې خو د کې جي بي د جاسوسي دام په لومه کې نښتی ؤ او بې وسه شوی ؤ. له بلې خوا د امین سرسخت او کینه کښ دښمن ببرک کارمل په مسکو کې تل روسان دې ته هڅول چې ډېر ژر د امین د راپرزولو اقدام ترسره کړي ترڅو د مصر معامله په افغانستان کې تکرار

نشي. روسانو هم په دې پلمه چې له ختیځ لوري د افغانستان په سرحدونو باندې حمله کیدونکې ده کابل ته د یو هوایي پل په جوړولو لاس پورې کړ او هم یې د شېرخان بندر، حیرتان او تورغنډۍ له لارو خپل جنګي وسایط او سرې لښکرې افغانستان ته راداخل کړې او د ۱۳۵۸ کال د مرغومی په شپږمه نېټه یعنی د واکمنۍ په (۱۰۱) ورځ یې د هغه واکمنۍ او ژوند ته د پای ټکی کېښود.

## د مسکو - کابل هوایي پل او د روسانو پوځي تیري:

روسانو له افغانستان سره د غازي امان الله خان د سلطنت له زمانې څخه د دوه دوستو او ګاونډیو هیوادونو په نوم د سولې یو دوه اړخیز قرارداد درلود، چې دغه قرارداد د محمد داؤد د جمهوریت ترپایه پورې دوام وکړ. د محمد داودخان د رژیم په نسکورېدو سره روسانو له نورمحمد تره کی سره د متن او محتوا په بیخي تغییر سره د سولې دغه قرارداد بیا نوی کړی ؤ چې د ملګرو ملتو د امنیت د شورا د ۵۱ - ٤۵ مادې په اساس شوروي اتحاد او افغانستان دوه مستقل او ګاونډي هیوادونه دي، چې یو د بل په کورنیو چارو کې به لاس نه وهي، خو که د یو له دغو دوه ګاونډیو هیوادو ارضي تمامیت او خپلواکي او یا د هغوی سرحدونه د کوم څواک یا بهرنی هیواد لخوا له خطر سره مخامخ کېږي یا وربانديی تیری کیږي، نو بل ګاونډی به یې د تجاوز او تیری د دفع کولو په خاطر پوځي مرسته کوي.

روسانو په همدې پلمه چې ګویا د افغانستان استقلال او انقلاب د امپریالیستي هیوادونو لخوا چې په سر کې یې د امریکا متحده ایالات دي تر ګواښ او خطر لاندې راغلی دی او امپریالیزم غواړي چې د چیلي هیواد معامله په افغانستان کې تکرار کړي، نو د مرستې په نوم یې د خپل انټرناسیونالیستي سره پوځونه او جنګي وسایط د هوا له لارې او هم د شېرخان بندر کندز، د بلخ حیرتان او هرات تورغنډۍ له بندرونو افغانستان ته رادننه کړل.

د کابل د خواجه رواش هوايي ډګر چې د پلچرخي زندان په لویدیزه برخه کې دی، سترې او بارو وړونکی الوتکې به چې د کابل په هوایي ډګر راکښته کېدلې نو د

پلچرخي د زندان په پراخه ساحه به یې په فضا کې یوه یا دوه دورې ووهلې او د رنوې لیکې ته به یې ځان جوړ کړ. پوره یوه هفته د ۱۳۵۸ کال د لیندۍ د میاشتې په وروستیو کې د روس درندې او غټې الوتکې د یو هوایي پل په شان پرته له کوم ځنډه په هوایي ډګر کې راکښته کېدلې او پروازونه یې کول او پوره یوه اونۍ د کابل فضا د روس د بار وړونکو غټو الوتکو آوازونو نیولې وه. بېکاره بندیانو په دې برخه کې ډول ډول تبصرې کولې. چا به ویل شوروي اتحاد افغانستان ته نوې وسله او ټانکونه د اوږدې مودې په پور ورکړې دي، چا به ویل لویدیز او ختیځ ګاونډیان افغانستان په اقتصادي محاصره کې اخلي، شوروي اتحاد د وسلو او مهماتو ترڅنګ خوراکي توکي او روغنیات افغانستان ته مرسته کړي دي ترڅو د څو کلونو اړتیا زېرمه کړي خو په وروستي پرواز کې دا موضوع روښانه شوه. مخکې مو اشاره کړې وه چې د سید عبدالله قوماندان له تېښتې کېدو وروسته د بندیانو د لیکو ترمنځ له بهر سره اړیکې ټینګې شوې وې، سیاسي ګروپونو چې له ځینو سیاسي بندیانو سره یې اړیکې درلودلې، ویلي وو چې ډېر زیات شمېر سره پوځیان او جنګي وسایط کابل ته رارسېدلي دي. په افغانستان کې د واک او رهبرۍ د بدلون ترڅنګ د خپل خلاصون په انتظار کې اوسئ، دا ښه خبر د ټولو سیاسي بندیانو غوږونو ته رسېدلی ؤ. سیاسي بندیان چې د رژیم د ایجنټانو د بې پایه ظلم او اختناق له امله د مرګ او ژوند ترمنځ پولې ته رسېدلي وو دې خبر په اورېدو یې شېبې شمارلې.

## د کام استخباراتي اداره:

د تره کي له وژل کېدو وروسته د امین په واکمنۍ کې د اګسا اداره په کام بدله شوه. «کارګري استخباراتي مرکز» چې مخفف یې «کام» ؤ منځ ته راغله. د اګسا اکثره کادرونه د امین پلویان وو، د اګسا رئیس اسدالله سروري چې د تره کي طرفدار ؤ له وړاندې نه ګوښه او پټ شوی ؤ د هغه پرځای یو بې تجربه ځوان چې لومړني زده کړه یې درلوده د عبدالعزیز یا سلطان عزیز په نوم د پولیسو ساتنمن چې له اسدالله سروري سره یې کورني او د خپلوۍ اړیکې درلودلې خو د حفیظ الله

امین په ګروپ کې شامل ؤ د کام د رئیس په توګه مقرر شو، لږه موده وروسته په یو له سوسیالیستي هیوادونو کې د افغانستان د استازي او سفیر په توګه وټاکل شو، له دغې اداري څخه ګوښه او په ځای یې د امین وراره او زوم اسدالله امین د کام د رئیس په حیث وټاکل شو. هغه بې تجربې او غیر مسلکي ځوان ؤ، چې د یوې داسې مهمې اداري په سر کې وټاکل شو.

د ورځ په زیاتی بحران له امله د کابل او پراتیفي اوضاع بېړنۍ اوضاع اعلان شوې وه. د ځینې خلقیانو او پرچمیانو ناخوښې او په خلکو باندې د رژیم د عمالو لخوا بې کچې مظالم ژوره کرکه منځ ته راوړې وه، چې له امله یې ورځ په ورځ خلکو له حکومت څخه فاصله پیدا کوله. د کام اداري او ټول اجرائیه ځواک ددې کفایت نه درلود چې کړکیچنه او وخیمه وضعه په لازمو تدابیرو سره بدله کړي. له بله پلوه روسانو په قصدي توګه د حکومتي دستګاه په دننه کې د حکومت د بې اعتباره کولو په موخه د خپلو ایجنټانو په واسطه ورانکاري کوله تردې چې د کام په اداره کې دننه په اسدالله امین حمله وشوه او هغه ټپي شو.

همدا راز روسانو د داخلي او خارجي استخباراتي شبکو له لارې په پرله پسې توګه حکومت ته د بهرنیو بریدونو او کودتا د رامنځ ته کېدو غلط راپورونه ورکول. دغو پېښو امین تر داسې سخت فشار لاندې راوستی ؤ چې اړ شو د سره ګارډ پوځیان له ځانه راچاپېر کړي او لکه د هوښیارې مرغۍ په شان په دوه لومو کې ونښلي او ونښت. له داخل نه د کام استخباراتي اداره چې واک یې د پردیو په لاس کې ؤ امین دې ته اړ شو هرڅه چې روسان غواړي همغسې وکړي، او بې کفایته کام چې یوازې د خلکو چور چپاو، وهلو ټکولو، شکنجه او په آزارولو پوهېده، یو ګام یې هم د حکومت په ګټه پورته نکړ او حکومت په ډېر کم وخت کې رانسکور او ړنګ شو.

## د ۱۳۵۸ کال د مرغومي ٦ مه د پنجشنبې ورځ:

د پنجشنبې په ورځ د ۱۳۵۸ کال د مرغومي په شپږمه مو د غرمې ډوډۍ خوړلې وه چې د زندان د قوماندانۍ لخوا اعلان وشو چې له غرمې وروسته په دوه

بجو د انقلابي شورا رئيس د راديو له لارې خپله تاريخي وينا اوروي، ټول بنديان دې پرته له کومې استثنى او عذر نه له خپلو اتاقونو څخه ووځي او د محبس په انګړ کې دې د مکروفون شاوخوا ته راجمع شي او بيانيه دې واوري. ټول بنديان له مکروفون نه ګرد چاپېره راټول شوو، له مکروفون څخه ترانې او نغمې اورېدل کېدې، تاکلى وخت راورسېد خو بيانيه خپره نشوه، څو دقيقې مو انتظار وکړ بيانيه خپره نشوه، د زندان قوماندان د خپل مرکز له راديويي مرکز څخه اعلان وکړ چې يوه غلط فهمي رامنځ ته شوې وه نن بيانيه نه خپرېږي، په راتلونکې کې به ستاسو په اطلاع ورسېږي.

د حفيظ الله امين او روسانو يو د بل په ضد عمليات د دقيقو په حساب حساس شوي وو، دا چې امين ولې خپله بيانيه په ۳ بجو له راډيو څخه خپره نکړه او يا يې ايراد نکړای شوه د حالاتو او اوضاع ته د بدلون اشاره وه. وروسته بيا څرګنده شوه چې رېښتيا هم امين په دې نه ؤ توانېدلى چې خپله بيانيه خپره کړي او د وطنوالو او نړيوالو غوږو ته يې ورسوي ځکه چې دا بيانيه ټوله د روسانو پر ضد وه او غوښتل يې چې ووايي د افغانستان خلک خپل آزاد او مستقل هيواد ته د سرو لښکرو راننوتل يو ډول تيري او له غرضه ډکه مداخله بولي. د روسي پوځيانو او مشاورينو د وتلو لپاره پرته له قيد او شرط څخه د يو تاکلى ضرب الاجل غوښتنه وکړي او د نړيوالو غوږونو ته يې ورسوي، خو روسانو چې د حفيظ الله امين له دې تصميم څخه خبرتيا لرله د غرمې په ډوډۍ کې ورته د کې جي بي لخوا زهر اچول شوي وو او هغه يې دومره مسموم کړی ؤ چې نه يې شوای کولای خبرې وکړي، بلکې د همغه روسي محافظ ګارډ په واسطه تر سختو ډزو لاندې راوستل شو او د خپل زوی عبدالرحمن او د کورنۍ له يو شمېر غړو سره ووژل شو.

په ښار کې د غرمې له دوه بجو وروسته د روسانو او پرچم ډلې ګډ عمليات چې هغوی هم په پټه د روسانو لخوا وسله وال شوي وو، او يوه ورځ د مخه روسي سلاکارانو د سلاپاکۍ په نوم د درنو وسلو او توپچي وسلو ستنې ايستلې وې او ټولې خطرناکې وسلې يې بېکاره او شنډې کړې وې، ټول پوځي

قطعات یې محاصره کړی وو چې د حفیظ الله امین د دفاع لپاره یې هیڅ فعالیت نشو ترسره کولای.

په پلچرخي زندا[illegible]وه غیر عادي او مطلقه چوپتیا حاکمه وه، دلې دلې پوځیانو په چېر[illegible]تې تبصرې [illegible] ولې، ماښام شو، راډیو او تلویزیون عادي خپروني کولې. په ۸ بجو تلویزیون بند شو، کله کله د تخنیکي ستونزو له امله د تلویزیون خپروونکی دستګاه ۲-۳ دقیقې خاموشه کېدله، خو په دې شپه ترسهاره خاموشه وه. راډیو خپلو عادي خپرونو ته ادامه ورکړې وه، کله چې په دقیق ډول د ۸ بجو خبرونو ته متوجه شو و چې د تېرې شپې خبرونه یې بیا تکراروي. د تلویزیون له چوپتیا او د راډیو له خبري پروګرام څخه او ضاع څرګندېدله چې ناڅاپه څلورو واړو برجونو باندې د درنو وسلو ډزې وشوې. په مقابل کې د زندان ټانکونه هم په حرکت کې راغلل او په متقابلو ډزو یې پیل وکړ. د زندان قوماندان د خپل دفتر له راډیویي مرکز څخه اعلان وکړ چې یو شمېر توطیه کوونکو غوښتل په زندان حمله وکړي خو د زندان د ساتونکو قواو لخوا غابین ماتونونکی جواب ورکړ شو او حمله په شا وتنبول شوه. درنې ډزې سختېدلې او رانږدې کېدلې، ډزې دومره سختې وې چې زندان یې لړزولو، د محبس د راډیویي مرکز له لارې غږ پورته کېده چې ویل یې: «د پلچرخي د زندان درنو سیاسي بندیانو! تاسو ته زیری درکوو چې د حفیظ الله امین فاشیستي رژیم نسکور شوی او امین د پوځي شورا د پرېکړې په اساس اعدام شوی او سیاسي قدرت د د. خ. ا. ګوند د اصیلو زامنو چې په سر کې یې ببرک کارمل دی په لاس کې دي. زمونږ هیواد د میرغضب امین له منګولو نه د تل لپاره نجات موندلی، ستاسو آزادي تاسو ته تبریک وایم.» د دې اعلامیې په اورېدلو سره په ټول زندان د خوښۍ او خوشحالۍ غږونه پورته شول، ورپسې بل اعلان وشو چې د محبس قوماندان او د محبس ټول افسران او قطعات بې وسلې شوي او د انقلابي ځواکونو په اسارت کې دي، تاسو د خپلو کوټو او هستوګنځایونو امنیت ټینګ کړئ، له زندانَ نه بهر او شاوخوا امنیت ټینګ شوی دی، د هرې اعلامیې په اورېدو سره د خوښۍ غږونه پورته کېدل.

زرهدار ټانکونه او محاربوي ماشینونه دوهم بلاک ته هم رانږدې تل او یو پیاده

دلگی هم د دوهم بلاک دهلېز ته راداخل شول. مونږ د کړکیو او دروازو له پنجرو څخه هغوی لیدل چې زمونږ خوا ته راتلل. یو تن روسي افسر له یو تن بل افسر سره چې په تاجکی ژبه یې خبرې کولې له مونږ نه وپوښتل دلته د پرچم بندیان دي؟

زمونږ د کوټې او بلاک یو تن بندي محمد افضل لودین چې په روسي ژبه پوهېده خبرې ورسره وکړې، روسي افسر د ټولو سیاسي بندیانو د شمېر او ترکیب په اړه معلومات غوښتل، لودین ورته څه لږ دېر معلومات چې لرل یې ورکړل، هغوی خپلې گزمې او گرځېدو ته دوام ورکړ او د دریم بلاک په لوري ولاړل. بندیان په خوښیو او چای څښلو بوخت شول، یو بندي چې په خپله راډیو یې لاس واهه، ناڅاپه د ببرک کارمل غږ چې د تاجکستان له راډیو څخه خپرېده واورېدل شو چې د انقلابي شورا پیغام یې لوسته.

حفیظ الله امین چې د ۱۳۵۸ په ۲۵ مه نېټه د تره کی له وژلو وروسته د قدرت واگې ترلاسه کړې وې د ۱۳۵۸ د مرغومی په ٦ مه نېټه په تپه تاج بېگ کې د روسانو لخوا ووژل شو او د قدرت واگی کارمل ته ولېږدول شوې. ستونزه په دې ځای کې ده چې آیا کارمل روسان افغانستان ته راوستل او که روسانو کارمل افغانستان ته راوستی ؤ.

په راتلونکی څپرکی کې به په دې موضوع وغږېږو.

## د ۱۳۵۸ کال د مرغومی ۷ مه د جمعې ورځ:

د جمعې په شپه د څرخي پل زندان په ټولو بلاکونو کې جشن ؤ، سندرو، شور او غالمغال تر سبا پورې دوام درلود. د محبس دلگی مشران او افسران هېڅوک نه لیدل کېدل خو بندیانو خپلې داخلي نظم ساتلی ؤ. د ملکي او پوځي یو څو محدود کسانو یو لست د انقلابي شورا لخوا زندان ته راغلی ؤ، او څلور عرادې سرویس موټرونه هم چمتو شوي وو چې په لست کې شامل کسان ښار او اړوندو ځایونو ته ولېږدوي. په یو موټر کې ښځینه بندیانې او په دریو موټرونو کې پوځي او ملکي نارینه بندیان چې د سرور منگل لخوا تنظیمېدل ځای پرځای شوي وو او د ښار خواته

يې حرکت وکړ. زه په تصادفي ډول له سليمان لايق سره د څنگ په چوکۍ ناست وم، ورته مې وويل: «ته پوهېږې چې زه ستا تر مشرۍ لاندې د يوې ناکامې کودتا په جرم بندي وم؟» ويل: «هو، زه يې هم په همدې تور زنداني کړی وم، په لسگونو او سلگونو بېگناه انسانان يې په همدې تور بنديان کړي وو.»

ښار ته ورسېدو، نظام الدين تهذيب او سليمان لايق د راډيو تلويزيون په څنگ کې او ځينې د پښتونستان واټ په څلور لارې کې له موټر نه پياده شول. څو تنه د پوليسو افسران له عبدالصمد ازهر سره د کورنيو چارو وزارت ته لاړو. ازهر د انقلابي شورا په شفاهي لارښونه د ژاندارم او پوليس د عمومي قوماندان په حيث توظيف شوی ؤ. د وزارت د ودانۍ يوه برخه رنگه شوې وه او ښېښې او کړکۍ يې په ډزو ماتې شوې وې. د کورنيو چارو د وزارت د مامورين او افسران گډوډ، بې سرپرسته او بې سرنوشته معلومېدل. وزير، عمومي قوماندان او د ادارو رئيسان موجود نه وو. د عمومي قوماندان عليشاه پيمان دفتر د ډزو له امله رنگ شوی ؤ، د همدې رنگ شوي دفتر له دروازې ننوتو او مونږ هريو يې په هرطرف توظيف کړو. ما ته يې ۲ ساعته اجازه راکړه چې کور ته لاړ شم، له مور و پلار او د کور له غړو سره ليدنه وکړم، خپل يونيفورم په تن کړم او د پلچرخي د زندان د سرپرست قوماندان په حيث دنده اشغال کړم او پخوانی قوماندان ښايسته خان بې وسلې کړم او ويې نيسم. له مرکزي جنايي څخه مې يو موټر واخيست، کور ته لاړم، د مور و پلار احترام مې پرځای کړ او د خپلو اولادونو ديدن مې وکړ. يو جوړ يونيفورم، موزې او ملاوستی (کمربند) مې په ډېر مشکل هغه هم پطلون د دوبي او جمپر د ژمي په کور کې ومومند او په تن مې کړل. د هغې د علت کيسه يې راته داسې وکړه چې د تېر کال په اوږدو کې زما کور درې ځل تالاشي شوی ؤ، خولۍ او يونيفورم چې د افسرانو لاس ته ورغلي وو د عکاسۍ له کيمرې، کوچنۍ راډيو، لاسي بترۍ، دوربين او نور کوچني سامانونه لکه چاقو، چاړه او نور يې له ځانه سره وړي وو. د سهيل په نوم د کام يو افسر زمونږ کور تالاشي کړی ؤ.

کله مې چې يونيفورم په تن کړ، د سر وېښتان مې ډېر اوږده شوي او دومره

وخت مې هم نه درلود چې نايي ته ورشم او وېښتان اصلاح کړم. په خپله مې په قينچي باندې لږ واړه کړل او د څرخي پله په طرف مې حرکت وکړ.

## د ښايسته خان قوماندان نيول او د زندان دنده:

له دې امله چې کوم رسمي مکتوب مې له ځانه سره نه درلود، مازديگر مهال د محبس د عمومي دروازې په مخکې له موټر نه کښته شوم او د نوکريوال کوټې ته ورغلم ترڅو اجازه واخلم او دننه لاړ شم. عسکرو او افسرانو چې زه د همغې ورځې په ۱۰ بجو له غرمې مخکې د دوهم بلاک د يو سياسي بندي په صفت پېژندم او د همغې ورځې په مازديگر يې په پوځي يونيفورم کې ليدم، داسې فکر يې کاوه چې زه د کوم رسمي کار لپاره د محبس د قوماندان څنگ ته ورځم، د قوماندان دفتر ته مې ټيلفون وکړ، اجازه راکړل شوه چې دننه لاړ شم. ما کومه وسله هم نه لرله، موټر يې تالاشي کړ، د قوماندان دفتر ته چې ورغلم، جگړن فيدروف مايور له يو تاجکي افسر سره چې د ژباړن په توگه ورسره ؤ له قوماندان سره ناست وو. ښايسته خان له مخکې نه په زړه خوړلی وه، خپله چوکۍ يې راته پرېښوده او په کوچ باندې له مايور فيدروف سره کښېناست. زه هم د ټولو په اجازه د قوماندان په چوکۍ کښېناستم، ځان مې ښايسته خان او فيدروف ته وروپېژاند، د مېز د خانو کونجيانې مې له ښايسته خان څخه تر لاسه کړې، مېز مې وکوت له وړاندې نه تصفيه شوی ؤ. يو جلد سل پاڼيزه کتابچه چې تور رنگی پوښ يې درلود او سليمان لايق په پښتو ژبه د خپل وړوکتوب د زمانې سرگذشت په کې ليکلی ؤ، څو نورې د يادښت پاڼې او کتابچې، او څو دانې پنسلونه او خودکار قلمونه مې وليدل، بل کوم شی د مېز په درازونو کې نه ؤ. چای راغی، د چايو په څښلو او بېلابېلو خبرو مصروف شوو، يو ميل ميکاروف تومانچه چې قوماندان څنگ ته اچولې وه ورته ومې ويل که دا تومانچه سرکاري وي نو مهرباني وکړئ تسليم يې کړئ، تومانچه مې په مېز کې قلف کړه، په دې وخت کې ښاغلی ازهر د بې سيم په ذريعه راته وويل له دې امله چې زيات شمېر بنديان د اردو افسران دي او يو شمېر د اردو افسران وژل شوي او بې درکه

ځانګړې توګه د ژمي په رخصتيو کې به يې ډېر وخت تېراوه. ما هم ورسره پېژندګلوي پيدا کړې وه. د ۱۳٤۳ او ۱۳٤۹ ترمنځ کلونه د خلقيانو او پرچميانو لخوا ګوند ته د غړو د جلب او جذب لپاره د سيالۍ يو فرصت ؤ. د حفيظ الله امين لپاره يو ښه چانس ؤ چې په کندز او تخار ولايتونو کې جلب او جذب وکړي. له يوې خوا په سيمه کې د هغه د ورور نفوذ او اعتبار او له بله پلوه د له خپل رسمي موقف څخه په جلب او جذب د افرادو کې په ځانګړې توګه په روښاندو کړيو کې ډېره ګټه پورته کوله. د ابن سينا د ليسې اکثره زده کوونکي د کندز، تخار او بغلان د ولايتونو وو چې د دريو مياشتو رخصتۍ په مهال به خپلو کورونو ته راتلل او حفيظ الله امين ته د جذب او جلب لپاره چې په خپله د ابن سينا د ليسې مدير ؤ ښه فرصت په لاس ورغلی ؤ، له همدې امله د خلق ډلې زياتره غړي د حفيظ الله امين له پلويانو څخه وو.

ما چې په کندز ولايت کې د پوليسو په نسبتاً يوه ښه چوکۍ کار کاوه، د ورور دوست يې وم چې له همدې کبله ما د حفيظ الله امين سره پېژندګلوی لرله. په هغه وخت کې زه د حزب غړی نه وم او د امين په سياسی فعاليت پسې مې هم غاړه نه وه وړې، د هغه وخت حکومت هم داسې پټ سياسي فعاليت نه تعقيباوه، په ښارونو او د هغې په شاوخوا قريو او کليو کې سپورتي محفلونه او د شپې محفلونه په آزادانه ډول جوړېدل. په بغلان، تخار او کندز ولايت کې له دريو مياشتو رخصتيو څخه د حفيظ الله امين هدف همدا جلب او جذب ؤ.

زه د ډاکتر شاه ولی د نيولو او د هغه د کور له تالاشی کولو څخه فارغ شوی وم، د امنيې قوماندان دفتر ته ورغلم ترڅو اجازه وغواړم او خپل کور ته لاړ شم، صديق واحدی او قوماندان بله پانه راوسپارله، چې په راسره ځوا ک او وسايطو سره د حفيظ الله امين په نيولو او د هغه د کور په تالاشی کولو پسې لاړ شم. له دې امله چې ما د هغه کور نه ؤ ليدلی، د استخباراتو د څانګې مرستيال محمد رحيم د لاربلد په توګه راسره وګمارل شو ترڅو د امين کور مونږ ته وښيي. زمونږ په ګروپ کې د کارته پروان د پوليسو د ماموريت معاون محمد محسن هم زيات شو. محمد

دي يـو تن تـورن مـحـمـد ظـاهـر «دامـيـار» د دفـاع وزارت د اسـتـازي په صـفـت محبس تـه درځـي تـرڅـو يودبل په همکارۍ سره کار وکړئ. ستاسو دا ګډ کوښښ به د بنديانو تر عمومي بخښني پورې دوام ولري. ښايسته خان ته مې وويل چې د سياسي تنوير په کوټه يا بل کوم صالون کې د ټولو ټوليو افسران او قوماندانان راجمع کړي ترڅو يو تربله سره وپېژنو. د سياسي تنوير په کوټه کې د زندان له افسرانو سره د زندان د سرپرست په حيث معرفي شوم، د يو سياسي محبس په دننه چې د دندو او د کارکوونکو د انساني سلوک په اړه راته ټولې تشې معلومې وې په دې اړه مو خبرې وکړې، د دوهم بلاک د ټولې قوماندان چې د ورځې په لومړي وخت کې له هغه سره بندي وم، د نورو په استازيتوب ماته د تبريک ويلو څو کلمې خبرې وکړې او زما په اړه يې د محبس د نظم، دسپلين، رعايت او اطاعت په برخه له مبالغې ډکې خبرې وکړې.

د قوماندان دفتر ته راغلو، محمد ظاهر داميار هم رارسېدلی ؤ. هغه مې فيدروف ته وروپېژاند، د شپې ډوډۍ مو له قوماندان او مېلمنو سره يوځای وخوړه او د شپې تر ناوخته پورې مو خبرې کولې. ښايسته خان چې رنګ يې الوتی ؤ او د خپلې راتلونکې په اړه اندېښمن ؤ د رژيم د کارکوونکو له ظلم، او په خپله د امين او د هغه د ډېرو د ظلمونو په اړه يې هاغه او دغه او د يوځای او بل ځای بې ارتباطه خبرې کولې. ښايسته خان نور د پرون ورځې ښايسته خان نه ؤ، دومره عاجز او خوار ژبی شوی ؤ چې فيدروف يې ټولې خبرې تاييدولې او له مانه يې هيله وکړه چې مسئولو مقاماتو ته ووايم چې هغه په کومه وړ دنده مقرر کړي. وړ به نه وي چې د هغه له تېرو ظلمونو څخه يې خبر کړم.

فيدروف له خپل ژباړن سره خپلې قرارګاه ته لاړ، ښايسته خان ما او داميار په داسې ډول په خپله کوټه کې په نوبت سره وساته چې په همدې شپه مونږ دواړه د دفتر په کوچونو کې استراحت وکړ او هغه په خپله بستره کې څملاست، که داسې مو نه وای کړي نو هغه محسوس کړی وای او بيا به مونږ تر سهاره ويښ وای.

سهار شو، د سهار له ناشتې وروسته مې ښايسته خان تحت الحفظ ازهر ته واستاوه.

## د بندیانو د لست بشپړېدل:

صمد ازهر راته لار ښوونه وکړه ترڅو د ټولو بندیانو دقیق لست په ځلور ټوکو کې بشپړ کړم، یو جلد د صدارت مقام (کام) ته چې وروسته یې بیا نوم په خاد (خدمات امنیت دولتي) بدل شو، یو جلد د ژاندارم او پولیس عمومي قوماندانۍ ته، یو جلد د زندان د قوماندانۍ د دفتر لپاره او یو جلد انقلابي شورا ته واستوم.

ددې لپاره چې د بندیانو دقیقه شمېره په لاس راشي د هر بلاک او هرې کوټې لپاره مې یو یو پلاوی وټاکه چې په چاپ شویو پاڼو کې چې د بندي نوم، د پلار نوم، د نیول کېدو نیټه، رتبه، دنده، اصلي سکونت، فعلي سکونت، لومړی کوم زندان ته وړل شوی ؤ، د پلچرخي زندان ته څه وخت راوړل شوی ؤ داسې نام نویس کړي چې یو نفر په دوه لستونو کې تکرار رانشي، ځکه په تجربه سره ثابته شوې وه چې په تېرو رژیمونو کې څو کرته د بندیانو د نام نویس لست ترتیب شوی ؤ، او داسې به خپرېده، هغه کسان چې د محکمې لخوا په حبس دوام او اعدام محکوم شوي نه وي د انقلابي شورا له خوا خوشې کېږي، هر کس د حفظ ماتقدم (مبادا) لپاره په دوه یا درې پاڼو کې ثبت نام کړی ؤ. ما هم په یو لست کې په دوه پاڼو کې ثبت نام کړی ؤ. بندیانو د لستونو او ثبت نام په اړه شک درلود، دا څه معنی لري هر وخت چې رژیم بدلیږي لستونه او ثبت نام ترتیب کېږي، خو تر اوسه هېڅوک نه دي خوشې شوي، دا ځل هم د تېر په شان یوه تکراري کیسه ده، څوک نه حاضرېدل چې ثبت نام وکړي. دا موضوع مې ازهر ته وویله، هغه هم چې له تېر جریان څخه خبر تیا لرله او بندیان یې په دې برخه کې حق په جانب ګڼل، خو ما ته یې داسې تفهیم کړه چې داخل داسې نه کېږي، له دې امله چې په تېر وخت کې یو شمېر ملکي او پوځي اشخاص پرته له محاکمې او پرېکړې وژل شوي دي، او یو شمېر هم لومړی زندان ته راوړل شوي دي او بیا بې درکه شویدي او د هغوی د اعدام په اړه په هېڅ مرجع کې هېڅ ډول اسناد شتون نلري، له عمومي بخښنې وروسته به د ورکو او بې درکو اشخاصو خپلوان فکر کوي چې هغوی به لا اوس هم بندیان وي، مونږ باید داسې اسناد وښایو چې د

۱۳۵۸ کال د مرغومې د شپږمې نېټې پورې په دومره شمېر کې بندیان په دې نوم او شهرت سره د ځرخي پله په زندان کې پاتې شوي وو او خوشې شول. کوم کسان چې ورک او بې درکه دي او هېڅ ډول سند يې موجود نه دی او سني دولت يې مسئوليت نلري. نو په همدې اساس په ځلورو نقلونو يا جلدونو کې ټول بنديان ثبت نام شول، ځينې له بنديانو نه چې په بالاحصار، د کام په ځانګو، د ځلور سوه بستريز روغتون په زېرزمينۍ او په ځلور بلاک کې له جنايي مجرمينو سره يوځای وو، ټول په دوهم بلاک کې راجمع کړای شول او ثبت نام شول چې شمېر يې (۱۰۷۶۵) تنو ته رسېده، دا چې په څومره شمېر کې بنديان ورک او بې درکه شوي وو د قيق شمېر له هېڅ کومې اداري څخه په لاس رانغی.

## د سياسي بنديانو د عمومي بخښنې اعلان:

**۸۰ تنه په بخښنه کې شامل نشول:**

د ۱۳۵۸ کال د مرغومې په ۱٤/۱۵ په شپه د راډيو تلويزيون د شپې د خبرونو په مهال د انقلابي شورا اعلاميه خپره شوه چې سبا ته د غونډې او جشن په ترڅ کې ټول سياسي بنديان پرته له کوم توپير، ايډيالوژيکی، ژبنی، منطقوي، قومي، مذهبي او سياسي ملاحظاتو بخښلي او له پلچرخي زندان څخه آزاد يږي. د ترانسپورت وزارت، د کابل ښاروالۍ او د ترافيکو رياست دې د نقليه وسايطو د برابرولو په برخه کې چې بنديان له ځرخي پله څخه ښار ته ولېږدول شي ږر تدابير ونيسي، د اردو وسايط او ترانسپورت دې هم په دې برخه کې مرسته وکړي.

عبدالصمد ازهر زه ورو غوښتم، د ۷۰ تنو جنرالانو، وزيرانو، د پارلمان د غړو، ۷ تنو پاکستاني اتباعو او ۳ تنو د پرچم ډلې چې انجنير محمد عزيز، ذبيح الله زيارمل او خليل زمر نومېدل چې ټول ۸۰ تنه کېدل لست راکړ او ويې ويل چې دا د درې کته ګوريو کسان د سبا ورځې په عمومي بخښنه کې شامل نه دي، په اړه يې په راتلونکی کې تصميم نيول کېږي. د هرې کته ګورۍ کسان بايد له سياسي بنديانو

ځخه بېل شي. د پرچم د ډلې د ۳ تنو په اړه مې ورنه وپوښتل، لومړنی او دوهم نفر د اګسا او کام سره همکاري کړې، د پرچم ډلې ډېر شمېر پټ کادرونه يې نيولی دي چې تراوسه لا ورک او بې درکه دي، دريم کس د محمد داود په رژيم کې د حزب اطلاعات مصئونيت ملي ته ورکول، له حزب سره يې خيانت کړی دی.

ما هم د لارښودنې سره سم د هرې کته ګوری کسان په بېلوبېلو کوټو کې واچول، له عمومي بنديانو ځخه مې جلا کړل او د عمومي بخښنې د مراسمو په ورځ مې کوټه قلفي کړل.

سبا د ۱۳۵۸ کال د مرغومی په ۱۵ مه محمود بريالی، نظام الدين تهذيب، عبدالصمد ازهر له يو زيات شمېر د راډيو تلويزيون عکاسانو، ژورنالستانو او خبريالانو سره زندان ته راغلل، په داسې حال کې چې د لکونو په شمېر د بنديانو خپلوان نر او ښځې د زندان په لويديز ميدان کې سره راټول شوی وو، له يوې لنډې بيانيې نه وروسته له ستر مارش سره چې په چک چکو او د زنده باد په نعرو بدرګه کېده، د زندان دروازې پرانيستل شوې. ټول سياسي بنديان آزاد شول، مولانا عبدالرب رسول سياف چې وروسته بيا د اتحاد اسلامي رهبر شو او د ډکتر نجيب الله د حکومت د دورې ترپايه له دولت سره وجنګېد هم خوشې شو.

د پلچرخي زندان د مرغومی د پنځلسمې نېټې د ورځې په نيمايي کې د سياسي بنديانو له وجود ځخه تخليه شو او يوازې ۸۰ تنه بنديان په درې کته ګوريو کې لکه چې مخکې مو ورته اشاره کړې ده په زندان کې پاتې شول. يو شمېر جنايي بنديان چې د هغوی د جرمونو په تناسب د عدلي محکمو لخوا په ټاکلو قيدونو محکوم شوی وو هم د زندان په ځلورم بلاک کې اوسېدل.

په اساسي توګه په زندان کې زما دنده پای ته رسېدلې وه خو په موقتي ډول د امين د رژيم د عمالو د ځای پرځای کولو لپاره چې د فاشيستانو په نوم زندان ته راوستل کېدل دغې دندې ته مې دوام ورکړی ؤ. يوه شپه محمود بريالی او عبدالصمد ازهر د تازه راغلو (فاشيستانو) سياسي بنديانو د ليدلو لپاره د پلچرخي زندان ته راغلي وو، انجنير عزيز چې د درې ګونو کته ګوريو په جمله کې له

عمومي بخښنې څخه محروم پاتې شوی و او ددې انتظار یې درلود چې یوه ورځ دثور رژیم د مسئول له کومې پیاوړي شخصیت سره ووینې او خپل حال ورته عرض کړي، د بهرته ستنېدلو په مهال په ناڅاپي ډول د محبس د قومانداني د دفتر په دهلېز کې د محمود بریالی څنګ ته حاضر شو او په ټیټ سر او زاري سره عارض کېږي چې ما هم د پرچم ډلې په سیاسي مبارزو کې کار او فعالیت کړی ؤ او په پای کې د حفیظ الله امین لخوا له ماموریت نه گوښه او بندي کړای شوم، په څه وجه له عمومي بخښنې څخه محروم پاتې شوی یم؟

محمود بریالی په بې پروایي او بې التفاتي ورته وویل: «راپورونه موجود دي چې تا د کام د ادارې په مرسته د حزب ډېر شمېر غړي د امین د استخباراتي ادارې په پنجو کې ورکړي دي چې زیات شمېر یې وژل شوي او بې درکه شویدي، او اوس د ملګرتوب لاپې کوې.»

انجنیر عزیز دا تورونه رد او په غمجنه او حق په جانب څهره او اوښلنو سترګو یې سوګند یاداوه چې هېڅکله یې د ملګرو په وړاندې داسې جنایت نه دی کړی او نه به یې وکړي.

محمود بریالی چې په خیر سره ورته کتل، ویل: «قول راکړه او بیا له سره وعده وکړه چې په هر ډول شو او بدو شرایطو کې به د حزب په داخلي مبارزو کې ریښتینی او وفادار اوسې.» عزیز هم پرته له ځنډه د قول (لاس) په ورکولو سره ژمنه وکړه او د محمود بریالی د ترحم ور وګرځېد او ازهر ته یې لارښوونه وکړه چې په خوشې کولو کې یې اقدام وکړي.

په دې ترتیب سره انجنیر عزیز سبا ته خوشې شو. ذبیح الله زیارمل یو دوه میاشتې وروسته خوشې شو، د ګوند له لیکو څخه اخراج او له دولتي کار څخه ګوښه کړای شو او بیا د ټیکسي چلولو آزاد شغل یې غوره کړ. د ډاکتر نجیب الله په واکمنۍ کې د سلیمان لایق په واسطه بېرته حزب ته داخل شو او د دفاع وزارت د سیاسي چارو د رئیس په توګه یې دنده ترسره کوله. د شهنواز تنی له ناکامې کودتا وروسته له دې کبله چې د کودتا په مقابل کې یې هېڅ ډول فعالیت ونه ښود، او

دقیق اطلاعات یې هم د ناکامې کودتا په اړه د دفاع وزارت د دوهم مسئول شخص په توګه دولت ته ورانډې نه کړل، بلکه د رژیم پرضد د دغه اقدام د تدارک په جریان کې یې د ناروغۍ په پلمه ځان په روغتون کې بستري کړی ؤ، په دې خیال چې که کودتا کامیابه شي بیا هم په راتلونکی رژیم کې چانس ولري، د دې کودتا له شنډېدو وروسته ذبیح الله زیارمل هم د دفاع له وزارت څخه اخراج شو.

د ۶۷ تنو په برخه کې چې د کابینې غړی، جنرالان او د پارلمان غړي وو او د عمومي بخښنې په ورځ نه وو خوشې شوي، واصفي د زراعت وزیر چې د لویې جرګې رئیس هم ؤ، جنرال غلام رسول د ضبط احوالات پخوانی رئیس، سید ظاهر د شکردرې وکیل، د هرات سناتور جنید او په لسګونو نور کسان چې نومونه مې یې په یاد کې نه دي پاتې، لږه موده وروسته یو په بل پسې د شفاهي او تحریري ژمنو په کولو سره له زندان نه آزاد شول. له دغې جملې نه هېڅوک په زندان کې نه وو پاتې شوي. د پاکستان د جاسوسي شبکې د ۸ تورنو کسانو په برخه کې معلومات نلرم چې وړاندې کړم، په غالب ګومان چې دغوی به هم په تدریجي ډول د بندیانو د تبادلې او یا د دواړو هیوادونو افغانستان او پاکستان ترمنځ د خبرو د پیل او یا دوستانه اړیکو په نوم خوشې شوي وي.

## په زندان باندې د خلکو برید:

د سیاسي بندیانو د عمومي بخښنې بهیر له ولولو نه په ډکو مراسمو، د لاسونو پړقولو د ژوندی دې وي او مرګ د حفیظ الله امین په فاشیستي نظام په نعرو سره د غرمې د ۱۲ بجو په شاوخوا کې پای ومونداو د غرور په وینا سره اعلان شوه چې بندیان خوشې شول او څوک په زندان کې نه دي پاتې. مراسم پای ته ورسېدل او عمومي دروازه وتړل شوه، خو هغه زیات شمېر کسان چې د خپلو خپلوانو د لیدلو لپاره د زندان په لویدیز میدان کې د سهار له ۶ بجو څخه د راډیو د اعلان ترمخه راټول شوي وو، لا یې هم میدان نه و خالي کړی او غږ به یې کاوه چې زمونږ بندیان نه دي راخوشې شوي، دا څرنګه عمومي بخښنه وه چې یو شمېر مو

خوشې کړل او یو شمېر نور مو نه دی خوشې کړي. ښځو او سړو، ځوان او سپین ږیری په اندېښنو او تشویش غېږ پورته کاوه، مهرباني وکړئ پاتې سیاسي بندیان هم راخوشې کړئ او ورو ورو عمومي دروازې ته رانږدې کېدل. د زندان د مؤظفینو لخوا ورته په څرګنده او تکرار سره ویل کېدل چې د زندان په دننه کې د سیاسي بندیانو له جملې نه څوک پاتې نه دي، خو هغوی نه منله. ځینو ویل چې زمونږ بندیان په ژېږ زمینیو کې اچول شوی دي، ځینو ویل چې ښایي بل ځای ته لېږدول شوی وي. د حسن او زلمی په نوم د حاجی غلام حسین دوه زامن چې د پل سرخ په کارته ۳ کې زما دیوال شریک ګاونډیان وو، ما ته دفتر ته راغلل او ویې ویل چې د حفیظ الله امین په حکومت کې د کابل د زوږ ښار په چنداول کې د حکومت او خلکو ترمنځ کومه موضوع پیدا شوی وه چې په دې موضوع کې زیات شمېر ځایي او لاروي ووژل شول، او ډېر شمېر خلک له کورونو او دوکانونو څخه ونیول شول. زمونږ پلار او تره (کاکا) چې حاجی غلام حسین او غلام تقي نومېدل، د منډیي د جادې له دوکان څخه د کام د کارکوونکو لخوا ورل شوی وو، په همغه وخت کې یې د کام په اداره کې مونږ ته ویلی وو چې د څرخي پل زندان ته لېږدول شوی دي، خو متأسفانه چې نن د خوشې شویو بندیانو په ډله کې ونه لیدل شول. ما دواړه په شهرت او رویت سره پېژندل ورته مې وویل چې زما په خبره بالکل یقین وکړئ چې ستاسو پلار او کاکا بیخي د څرخي پله زندان ته راغلی نه دي او که نه هرو مرو به په دومره وخت کې د هغوی له شتون څخه خبر شوی وای، په ځانګړې توګه کله چې زه له زندان نه خوشې شوم او بېرته د همدې زندان د سرپرست په حیث مؤظف شوم، هره ورځ په ټولو بلاکونو او کوټو کې ګرځېدم، که په هر بلاک کې وای، ما هغوی باید لیدلی وای، خو حقیقت دا دی چې متأسفانه هغوی دې زندان ته له سره راوستل شوی نه دي، په سلګونو او زرګونو انسانان له همدې امله ورک او بې درکه دي او کورنۍ یې په غم کې سوځي، ددې لپاره چې باور یې وشي، ټولو بلاکونو ته مې له ځان سره بوتلل او په کې ومې ګرځول، او ور ومې ښودل چې ددې محبس په جوړښت کې زیرزمینی نشته او باید چې ویې نه لري، د څلورم بلاک جنایي بندیان او هغه ۸۰ تنه سیاسي

بندیان چې تر امر ثاني پورې ځنډول شوي وو، ټول مې د هغوی له نظره تېر کړل، یقین یې کامل شو چې کومه زېر زمیني نشته او کوم سیاسي بندي هم نه دې پاتې شوی، کومو کسانو چې په عمومي دروازه حمله راوړې وه او چیغې یې وهلې، حسن او زلمي چې د هغوی په استازیتوب یې له زندان څخه لیدنه وکړه، حقایق یې ورته بیان کړل او خوارانو له اوښکو نه په ډکو سترګو ځای پرېښود او لاړل.

## د حفیظ الله امین د رژیم برېښي د فاشیستانو په نوم بندیان شول:

د لومړي سیاسي بلاک په لومړي چت کې کوچنۍ، تیاره او مرطوبې کوټې وې، د کابینې غړي، د حزب د سیاسي دفتر غړي او د امین د کورنۍ غړي یو په بل پسې زندان ته راوړل شول. صالح محمد زیری، دستګیر پنجشېري، اسماعیل دانش، بارق شفیعي، علیشاه پیمان، صالح محمد فیروز، کریم میثاق، اقبال وزیری، صادق علمیار، عبدالقدوس غوربندی، ډاکتر شاه ولی، په زغره والو کې یوځای زندان ته راوړل شول. له دې جملې نه اقبال وزیري د دفاع وزارت د سیاسي چارو رئیس، صادق علمیار د کمانډو د قطعې قوماندان او صالح محمد فیروز د فواید عامې د وارت معین ځانته ځانته ډول او پاتې نور دوه دوه تنه په کوټو کې بندیان شول.

په بله شپه یې د امین فامیل راووست، دوه پېغلې لورګانې یې چې ملالۍ او ګلالۍ نومېدلې او د مرغومې په شپېرمه ورځ د تاج بېګ د غونډۍ په قصر کې ټپي شوي وې، پنډۍ او ورنونه یې په چرو لګېدلي وو لس ورځې په روغتون کې بستري وې، په پلستر شویو پښو زندان ته ولېږدول شوې، په دوهم منزل په دوه خوا په کوټو کې بندیانې شوې.

د هغوی د ثبت او راجستر لپاره ورغلم، یوه پردې زنانه چې د کندهارې پښتو په لهجه یې خبرې کولې هم د هغوی په منځ کې وه، معلومه شوه چې هغه د صالح محمد زیری منېرمن ده، ماته یې داسې کیسه تېره کړه څه موده مخکې چې اسدالله

امین تېښې شو او له درملني وروسته جوړ شو او کور ته راغلی و نو د هغه د عیادت لپاره په تاج بېګ غونډۍ کې د امین کور ته ورغلی وه، کله چې په دې قصر باندې حمله وشوه نو هغه هم د غلته ایساره شوه تر دې چې بیا وروسته لومړی روغتون ته او له روغتون نه بیا محبس ته راوستل کېږي، په داسې حال کې چې صالح محمد زیری هم د همدې بلاک په لومړی منزل کې ؤ او له شپږم جدي وروسته یې د خپلې مېرمنې په اړه کومه اطلاع نه لرله.

## زیری او پنجشېري په زندان کې:

صالح محمد زیری او دستګیر پنجشېري دواړه د ګوند د سیاسي دفتر غړي او د امین په کابینه کې د زراعت او فواید عامې وزیران وو، په یوه کوټه کې بندیان وو، زما سره یوازې دومره امکانات موجود وو چې شپه او ورځ یې کوټه توده وساتم، د بندیانو په لاس جوړه شوی یوه د سطرنج تخته مې ورته برابره کړه، دواړه په سطرنج مشغول شول، کوټه یې توده او دم په دم ورته چای تیارېده. یوه ورځ وروسته د انقلابي شورا یو استعلام د کورنیو چارو د وزارت له لارې راورسېد، او دوی یې په هغه موټر کې چې ورته راغلی ؤ انقلابي شورا ته ولېږدول. دوی ته مې وویل چې: «تشناب ته لاړ شئ، ږیرې حجامت کړئ، دریشي واغوندئ او انقلابي شورا ته لاړ شئ.» دواړه حیران او اندېښمن شول، باور یې نه کېده چې دا خبره به حقیقت ولري. څو دقیقې وروسته چمتو شول، پنجشېري چې له مخکې نه مې پېژندلو راته وویل: «مونږ یې د پولیګون خواته بللی یو که انقلابي شورا ته؟» په خندا مې ورته وویل: «لږه شېبه وروسته چې په موټر کې مو حرکت وکړ او څرخي پل ته ورسېدئ در ته به څرګنده شي، که ښي طرف ته موټر تاو شو نو پولیګون مو په مخکې دی، او که کیڼې خواته وڅرخېد نو د ښار او د انقلابي شورا د مقر لاره ده.» د انقلابي شورا استعلام مې وروښود، الوتی رنګونه یې نورمال حالت ته راغلل، پنجشیري د ږیرې یو ماشین او زېري یو پارکر قلم د یادګار په ډول راکړل او په زندان کې چې څومره وخت وو نو د محبس د ټولو کارکوونکو له ښه سلوک څخه یې خوښي او رضایت

وښود . د هغوی یادګاري شیان اوس هم راسره موجود دي. لږ وخت وروسته بارق شفیعي، اسماعیل دانش او ساغري هم خوشې شول. ما یوه میاشت وړاندې په اخبار کې د تره کی د شخصیت پرستۍ د کیش ترعنوان لاندې یوه مقاله چې په پښتو ژبه وه لوستې وه چې اسماعیل دانش لیکلې وه. له دانش نه مې وپوښتل: «تاسې په پښتو هم کله مقاله لیکلې ده، دا مقاله ستا په قلم ده؟ اوس هم د تره کی د شخصیت پرستۍ کیش تاییدوئ؟» دانش وویل: «یوه مقاله مې تر همدې عنوان لاندې لیکلې وه خو د اخبار اداري هغه په پښتو ژباړلې وه او د ځینو تصرفاتو او اضافو سره یې خپره کړې وه.» ورته ومې ویل: «له خپرېدو وروسته چې تا هغه ولوستل او برحال وزیر هم وې، د اخبار له اداري سره دې څه معامله وکړه؟» ویې ویل: «مونږ د امین په رژیم کې یوازې د وزیرانو په نوم وو، کوم صلاحیت مو نه درلود، مقاله مې له سر نه تر آخره ولوستله، هیڅ مې ونه ویلای شول، ټوله مقاله راباندې تحمیلي لیکل شوې وه.»

## روسان او کارمل:

کارمل د خپل تبعید په وخت کې د شوروي اتحاد واکمنان په دې باوري کړي وو چې هغه د کمونیزم یوازینی وفادار سوتیست دی او په افغاني ټولنه کې ځانګړې محبوبیت لري او د افغانستان په سیاستوالو کې یو کامیاب او ځواکمن سیاستوال دی. تره کی یو ساده مزاجه شخص او امین فاشیست او د لویدیځ ارتجاع پلوي شخص او له اسلامي اپوزیسیونی ډلو او تنظیمونو سره او له هغې لارې بیا له CIA سره اړیکې لري.

روسانو چې له پخوا څخه د سمندر تودو اوبو او د فارس خلیج سواحلو ته د رسېدو پلان درلود له تره کی سره یې د سولې تړون لاسلیک کړ او افغانستان ته د خپلو سرو لښکرو د ننوتو لاره یې د ډیپلوماسۍ په طریقه هواره کړې وه. کله چې تره کی د امین له لاسه ووژل شو، روسانو په چټکۍ سره خپل جنګي وسایط او ۱۵۰ زره پوځیان د انترناسیونالیستي مرستې او د افغانستان د سرحدونو او په افغانستان د

رحیم چې په رحیم چوچه یې شهرت درلود ، مونږ یې د باغ بالا لمنې ته بوتللو ، د هغه په لارښوونه مې یو کور محاصره کړ ، د دروازې زنګ مې وواهه. یو تن چې ځان یې ښوونکی معرفي کاوه ، کله چې یې خپل کور د پولیسو لخوا محاصره ولید ، ډېر اندېښمن او بیړنی ښکارېده. ترې ومې پوښتل د حفیظ الله امین کور همدا دی؟ په داسې حال کې چې ژبه یې بندېدله وویل: نه ، حفیظ الله امین درې میاشتې کېږي چې له دې ځایه یې په خوشحال مینه کې خپل نوی کور ته کډه کړی ده ، زه له امین سره هېڅ اړیکې نه لرم. معذرت مې ورنه وغوښت او د شپې په ۱:۳۰ بجه مو د خوشحال مینې په طرف حرکت وکړ. له رحیم چوچه نه مې پوښتنه وکړه چې د امین نوی کور به د خوشحال مینې په کوم سرباندې وي ، هغه ته هم پته نه وه او یا دا چې مونږ یې غلطولو. زه په شک کې شوم چې د استخباراتو د ځانګې معاون چې د سیاسي رجالو او د دولت د مخالف سیاسي جریانونو د سرسر رجالو سره سروکار لري ، ولې بې خبره وي ، له بلې خوا رحیم چوچه یو مرموز شخص ؤ ، او لکه چې واک ته د امین له رسېدو وروسته یې لکه د پخوا په شان په استخباراتو کې او ان چې په «کام» کې یې په لوړ مقام باندې وظیفه اجرا کوله («کام» د امین د رژیم د استخباراتي دستګاه نوم ؤ). د شپې تر ۲ بجو پورې په خوشحال مینه په یوه او په بل سرک دېخوا او هغه خواته وګرځېدو. په پای کې د سمت ماموریت ته ورغلو ، د پولیسو مامور فدا محمد مو له ځان سره واخیست ، د امین د کور دروازې ته ورسېدو ، چې د همدې پولیسو د ماموریت په کوخه کې ؤ. لکه څنګه چې لازمه وه کور مې محاصره کړ ، د دروازې زنګ مې کیمانده ، د امین زوی عبدالرحمن چې د پولی تخنیک محصل ؤ دروازه پرانیستله. له عبدالرحمن سره په سوال او جواب بوخت وم چې حفیظ الله امین د دوه تنو میلمنو سره دروازې ته راغی ، چې زه یې ولیدم په خندا یې راسره روغبړ وکړ ، ما هم ورته د دولت تصمیم او د لوی څارنوالی حکم ابلاغ کړ. په جواب کې یې راته وویل مهرباني وکړئ راننوځئ ، زه کوم ممانعت نلرم ، د حکم تر مخه باید دواړه میلمانه هم نیول شوی وای خو امین راته وویل چې دا دوه تنه میلمانه زما د زوی عبدالرحمن همصنفیان دی ، کله کله د سبق زده کولو

## څلورم څپرکی:

# ډاکتر نجیب الله، د ثور له کودتا څخه مستقله دفاع، د ملي روغې جوړې سیاست، د سولې لپاره د ملګرو ملتو هڅې، د ډاکتر نجیب الله د دولت پرضد کودتا، د جنرال دوستم بغاوت

ډاکتر نجیب الله د اخترمحمدخان زوی د پکتیا ولایت د سیدکرم ولسوالۍ اوسیدونکی، په قوم احمدزی، خپل تحصیلات یې د کابل پوهنتون د طب په څانګه کې سرته رسولي وو. په سیاست کې د مصروفیت له امله د همغې څوانۍ او تحصیل له دورې څخه د ډاکترۍ له مسلک نه لرې پاتې ؤ او د یوه څواکمن کادر په توګه یې د پرچم ډلې لپاره مبارزه کوله. د ثور له کودتا نه وروسته په خلق او پرچم ډلو کې چې کوم انشعاب منځ ته راغی، نوموړی په ایران کې د افغانستان د سفیر په توګه وټاکل شو. د امین د دولت له سقوط نه وروسته د خاد د ادارې د رئیس په توګه یې دنده ترسره کوله. د لیونید بریژنیف له مړینې وروسته په بنسټیزه توګه د کمونیزم په نړۍ او د هغې په پلوي بلاک کې تغییرات منځ ته راغلل. میخائیل ګورباچوف چې پخوا د کی جی بی د ادارې رئیس ؤ او دا مهال یې په لندن کې د شوروي اتحاد د سفیر په توګه دنده اجرا کوله د غربي ماډل له نظریاتو سره د سوسیالیست شوروي اتحاد د دولتي او حزبي رهبر په حیث منځ ته راغی، او د سیاسي نوي تفکر تر منظم پروګرام لاندې یې د شوروي اتحاد د ټولنې د بیا رغاونې او په ټوله سوسیالستي نړۍ کې د بدلون راوستو ګام پورته کړ چې په

گاونډیو له تیري څخه د مخنیوی او دفاع په نوم افغانستان ته داخل کړل، امین یې وواژه او کارمل واک ته ورسېد.

د افغانستان خلک په دې باور دي چې کارمل د شاه شجاع په شان افغانستان ته وارد شویدی، په دې توپیر سره چې شاه شجاع د انګریزانو په آس سپور او د ختیځ له لوري افغانستان ته وارد شوی ؤ او کارمل د روسانو په ټانک سپور د شمال له لوري افغانستان ته وارد شو. په ښکاره خو وه هم همداسې، خو حقیقت دا دی چې روسانو کارمل د الترناتیف په حیث له ځانه سره ساتلی ؤ، کله چې پوه شول چې امین به ډېر ژر له روسانو مخ واړوي، کارمل یې له ځانه سره افغانستان ته راووست، نه دا چې کارمل روسانو ته افغانستان ته د راتګ دعوت ورکړی ؤ، روسانو د خپل پلان د پلي کولو لپاره له کارمل څخه بل ښه او غوره ځوک نه درلود. په ډېره عجله یې امین وواژه او کارمل یې د قدرت په ګدۍ کښېناوه. که د امین په لاس تره کی نه وای وژل شوی، ښایي روسان په کومه بله بڼه صحنې ته راداخل شوی وای، کارمل او تره کی به یې په قدرت کې شریک کړی وای او امین به یې له صحنې ایستلی، نیولی او یا اعدام کړی وای، خو د امین په لاس د تره کی وژل کېدو د کارمل هغه ټول راپورونه او اطلاعات صحیح ثابت کړل چې روسانو ته یې ورکړي وو او د افغانستان د اشغالولو او واک ته د کارمل د رسولو اقدام یې وکړ.

د افغانستان خلکو چې هېڅکله یې پوځي تیری او د پردیو اشغال نه دی زغملی په یوځل یې لویدیز او هغو کسانو ته چې مرسته یې ورسره کوله چې له هیواد نه یې روسان اوباسي، مخه کړه، د کمونیزم لویدیز سیالانو چې په سر کې یې د امریکا متحده ایالات وو، ښه فرصت په لاس راوړ ترڅو روسان په نړیواله کچه رسوا او له هغوی څخه د ویتنام غچ په افغانستان کې واخلي، همداسې وشوه چې افغانستان د جګړې ډګر شو، روسانو د افغانانو د مقاومت او نړیوال فشار له امله د افغانستان پرېښودو ته اړ شول، خو افغانستان تراوسه له کورنیو جګړو څخه نجات نه دی موندلی او لاهم د جګړو په اور کې سوځي.

ټوله نړۍ کې یې هم بدلون راووست او د سوسیالستي ټولنې د ۷۰ کلونو لاسته راوړنې یې داسې په سیند کې لاهو کړې چې ټوله نړۍ د هغې شاهد ده. په دې بحث کې مونږ له هغې سره کار نلرو. په فقیر او نېستمن هیواد افغانستان کې پر ته له دې چې په ټولنه کې د سوسیالستي ټیپ انقلاب ته ذهني او عیني شرایط برابر وي، روسانو د ایډیالوژۍ په خپرولو او د پیسو د مرستو په واسطه د یوې ډلې روزل شویو ایجنټانو په واسطه د محمد داودخان د دولت پرضد وسله وال پاڅون وکړ او د کمونیستي ټیپ یو دولت رامنځ ته کړ او رسماً یې په ختیځ یعنی سوسیالستي بلاک پورې وتاړه.

لاهم له لوړو ژورو، انشعابونو او کودتاګانو څخه فارغ شوی نه ؤ چې میخائیل ګورباچوف په شوروي اتحاد کې قدرت ته ورسېد. ببرک کارمل یې چې د لیونید برژنیف د لاس آله وه پرته له نه او مه څخه د افغانستان له دولتي او حزبي مشرتابه څخه لرې کړ او د یو تحمیلي پلینوم په دایرولو سره یې ډاکټر نجیب الله د هغه پرځای د د. خ. ا. ګوند د منشي او د انقلابي شورا د رئیس په توګه رامنځ ته کړ، له دې نه مخکې هغه د دارالانشاء د منشي په توګه له خاد اداري څخه وتلی ؤ ترڅو د حزبي او دولتي مشرۍ له پاره روزل شوی وي.

داسې خپرونې وشوې چې ډاکتر نجیب الله د کمونیستي ټاپې سره سره د لویدیز نظریاتو او د غربي ټیپ دیموکراسۍ ته مایل ؤ، هغه هم د ګورباچوف په شان په افغاني ټولنه کې یو لړ بنسټیز بدلونونه راوستل، لومړی دا چې په ښکاره یې دولت د د. خ. ا. ګوند له تسلط او رهبری کولو نه خلاص کړ، حزبي سازمانونه له لاندې نه په پورته په غیر فعال او نمایشي ډول منځ ته راغلل، له افغانستان څخه د شوروي د سرو پوځونو د ایستلو هڅې پیل کړې او له هغې څخه یې خپله مستقله دفاع د شوروي په رهبرۍ اعلان کړه. هرڅنګه چې کېږي پارلمان منځ ته راوړي، نوی اساسي قانون یې طرحه او عامه نظر ته وړاندې کړ، لویه جرګه یې جوړه او د اساسي قانون مسوده یې له تعدیلاتو سره په تصویب ورسوله، د جمهوري ریاست د خپلې رهبرۍ او ریاست مشروعیت یې د لویې جرګې په تصویب ورساو،

د ملي روغې جوړې او پخلاينې سياست يې اعلان کړ، له ټولو مخالفينو او د اسلامي تنظيمونو له اپوزيسيوني ډلو سره يې پرته له کوم قيد او شرطه د خبرو وړانديز وکړ، هيواد ته د افغان مهاجرينو د بېرته راتګ لپاره يې عمومي بخښنه اعلان کړه او د بخښنې ميعاد يې څو کرته تمديد کړ، ملګرې ملتونه يې وهڅول ترڅو په لانجه کې شاملې دواړه خواوې د خپل منځګړتوب په واسطه د خبرو مېز ته کښېنوي.

د ژنيو د موافقو هرکلي يې وکړ او د ۱۳۶۷ کال د سلواغې په ۲۶ مه نېټه چې د شوروي سره پوځونه له افغانستان نه ووتل، خپل مستقل چلن يې غوره کړ، مخالفينو په جلال آباد حمله وکړه خو د اردو اعلی سرقوماندان ډاکتر نجيب الله دفاع وکړه، له لويديزې نړۍ او د امريکا له متحده اياالتونو سره يې غوښتل دوستانه اړيکې ټينګې کړي او له کورنيو جګړو څخه ځان خلاص کړي، د جګړې د دفع کولو، د قدرت د ويش او د خلکو د اکثريت د خوښې وړ يو نظام رامنځ ته کولو ته که څه هم له مقام څخه دده په استعفی تماميږي هم چمتو شو. دا نوبت په نړۍ کې ښېلګه نلري چې د واک په ګدۍ ناست يو جمهور رئيس چې د دفاع کولو ډاډ هم ولري، د خپلو هيوادوالو او هيواد آرامۍ او سوکالۍ لپاره استعفی ته چمتو شوی وي. ډاکتر نجيب الله کوښښ کاوه چې ملګرو ملتو او نړۍ ته ثابته کړي چې ملي ګټو ته په شخصي ګټو ترجيح ورکوي او له خپل مقام څخه يې د ملي روغې جوړې د کړنلارې د عملي کېدو لپاره چې په خپله يې وړاندې کړې ده د استعفی ژمنه وکړه، خو د ملګرو ملتو ځانګړی استازی بينن سيوان ونه کړای شول او يا يې ونه غوښتل چې د ملګرو ملتو مشخص پلان په دواړو خوا عملي کړي او د ملګرو ملتو د سياسي استازي همدغې غلطۍ او اشتباه، افغانستان په وينو ولاړه او په کنډوالو يې بدل کړ.

ډاکتر نجيب الله دا وړاند وينه د خپلې واکمنۍ په زمانه کې د افغانستان خلکو ته په خپلو بيانيو کې په څرګنده تشريح کړې وه، خو خام کاري سياستوال بينن سيوان د زرګونو افغانانو وينې په افغانانو وبهولې او د افغانستان په ګڼ توکمي

ټولنه کې یې د دښمنۍ او بې اتفاقۍ داسې تخم وکاره چې کلونه کلونه به زمونږ هیواد د توپیرۍ، توکمي، قومي، ژبني، منطقوي، مذهبي او ایډیالوژیکي جګړو په اور کې سوځي، او په کمین کې ناست زمونږ د ختیځ او لویدیز دښمنان به ورځ په ورځ په زړه پورې سیاسي او اقتصادي ګټې پورته کوي، او که اوضاع په همدې ترتیب دوام ومومي نو د افغانستان د تجزیه کېدو ګواښ هم شته چې د واحد افغانستان نقشه به د نړۍ د نقشې له مخې محوه شي.

ډاکتر نجیب الله د خپلو اسلافو په خلاف د هیواد د سولې او سوکالۍ غوښتونکی ؤ، پخوانۍ پوځي نظریه یې د سولې او روغې په نظریه بدله کړې وه، ټولو مخالفو اپوزیسیوني ډلو ته یې اعلان کړی و چې دې چمتو دي سولې ته د رسېدو او د حل د لارې موندلو لپاره نېغ په نېغه له هغوی سره خبرې وکړي او د افغاني سیستم په جرګې سره ستونزه حل کړي، خو د افغانستان دښمنانو ونه غوښتل چې افغانان په خپل اتفاق سره ورانوونکې جګړه پای ته ورسوي او د هیواد د ودانۍ لپاره سره یو موټی شي بلکې افغانان د زیاتو ورانیو لپاره بېلابېلو ائتلافونو ته تشویق او هڅوي.

## شمالي ټلواله او د دوستم تحریک (جنبش):

عبدالرشید دوستم چې د کارمل د رژیم په وخت کې یې په جوزجان ولایت کې د ازبک ملیشه قوماندان په توګه تبارز کړی ؤ، د خپلو جنګي فعالیتونو او ښوښتونو له کبله د اتل لقب وګاټه، او پوړۍ په پوړۍ مخ ته لاړ، وروسته بیا د ملیشه فرقې د قوماندان په توګه وټاکل شو، او د هیواد په شمالي برخو سربېره یې د پغمان، لوګر، پکتیا او ننګرهار په عملیاتو کې هم فعاله ونډه لرله، او د کابل په ښار کې یوه قرارګاه هم جوړه کړې وه. د ډاکتر نجیب الله په دولت کې یې یوه بله اتلولۍ هم وګټله او د تورن جنرالۍ رتبې ته یې ارتقاء وکړه او هم د د.خ.ا. په دوهمه کنګره کې د مرکزي کمیټې غړی شو.

جنرال جمعه خان اڅک هم د شمالي صفحاتو د زون آمر یو آزمویل شوی

قوماندان او د رژیم وفادار ؤ. په قوم پښتون ؤ، هغه یو قاطع او بادسپلینه شخصیت ؤ، د دندې په برخه کې یې مرکزیت ته په هرڅه ترجیح ورکوله، د مزار شریف په ښار کې یې د وسله والو ملیشه و گرځېدل راگرځېدل منع کړي وو، په ښار کې یې د ملیشه و د اوردو پاینځو پرتوگونه او اوږد لمنې کمیسونه او اوږده او گډه وېښتانو نشو زغملی، اکثره ملیشه یان چې بېسواده، د مخدره موادو معتاد او همجنس بازان وو، په ښارونو کې به کله کله د خلکو د زوررولو او تکلیفولو سبب کېدل، جمعه اڅک به هغه نیول او مجازات کول به یې.

جنرال دوستم او د ملیشې فرقه یې مستقیماً په مرکز پورې تړلې وه، د شمالي زون نظم او ډسپلین ته یې چندان غاړه نه اېښودله، له همدې امله د دغو دواړو ځواکمنو جنرالانو ترمنځ ذهني مخالفتونه پیل شول، خو په ډاگه شوی نه وو. دا مخالفت هغه وخت په ډاگه او زور یې واخیست چې جنرال دوستم، جنرال مؤمن او جنرال سید جعفر نادري په گډه جنرال جمعه اڅک، جنرال تاج محمد او جنرال رسول په مقابل کې جبهه ونیوله.

د شمال د زون رئیس، د خاد رئیس د دهدادۍ د فرقې قوماندان (جمعه اڅک، تاج محمد رسول قهرمان) پښتانه او جنرال عبدالرشید دوستم ازبک، د حیرتان د سرحدي لوا قوماندان جنرال مؤمن تاجک، سید جعفر نادري د سید منصور نادري زوی او د سید کیان نسې د اسماعیلیه فرقې څخه ؤ، په هغو تحریکونو کې چې د پښتنو پرضد په لوړه کچه پیل شوی وو، درې واړو جنرالان د زون د رئیس د اوامرو له منلو څخه غاړه وغړوله، نو د مخالفت څپه په ډاگه شوه. جنرال جمعه اڅک هم له موضوع څخه مرکز ته خبر ورکړ او د درې واړو د گوښه کولو غوښتنه یې وکړه. له بله پلوه ببرک کارمل چې مسکو ته له شړل کېدو وروسته کابل ته راستون شوی ؤ وروسته یې مزار شریف ته سفر وکړ او د ډاکتر نجیب الله پرضد یې د یو لړ ورانکارو عملیاتو په ترسره کولو او پاروونکو تحریکونو لاس پورې کړ، تردې چې د نظار شورا د مشر احمدشاه مسعود او عبدالرشید دوستم ترمنځ یې د ائتلاف لپاره زمینه برابره کړه ترڅو په دې ترتیب سره د ډاکتر نجیب د رژیم پرضد

کودتا په لاره واچوي. همدا راز له بلې خوا په شخړه د ښکېلو خواو (دولت او اپوزیسیوني اسلامي ډلو) ترمنځ د سولې د خبرو لپاره ملګرو ملتونو د یوې موقتي شورا جوړېدو ته نژدې شوي وو.

د ګوند په سیاسي بیرو کې یو شمېر کسانو چې له تاجک قوم څخه وو درز پیدا کړه او د شمالي تېلوالې ته یې تمایل ځرګند کړ، جنرال نبي عظیمي او جنرال آصف دلاور هم له ناراضیانو څخه او د کارمل وفادار وو.

ډاکتر نجیب الله ډېره هڅه وکړه چې د جنرالانو ترمنځ مخالفتونه په یو نه یو ډول سره لرې کړي ترڅو د ملګرو ملتو پلان عملي شي. هرڅوک یې چې له مرکز څخه د مخالفتونو او بغاوتونو د خاموشه کولو لپاره بلخ ته واستول، په برعکس یې د مخالفتونو زیاتولو ته لمن ووهله. نجم الدین کاوياني، فرید مزدک، سید اکرم پيګير، جنرال نبی عظیمی، جنرال آصف دلاور او جنرال رفیع په نوبت سره یو پل بل پسې بلخ ولایت ته سفرونه وکړل، خو دغې ستونزې ورځ په ورځ لا زور واخیست، دا لا څه چې د احمدشاه مسعود او عبدالرشید دوستم د ائتلاف ګډ پوځي عملیات د کابل په لوري پیل شول.

ډاکتر نجیب الله چې د حزبي رهبرۍ داخلي وضع او د شمال د ملیشه قطعاتو زور د نظار شورا له ائتلاف په دقیقه توګه وجاجاوه، نو د ملګرو ملتو د منځګړیتوب د پروسې د تسریع غوښتنه یې وکړه او د جمهوري ریاست له مقام نه یې خپله استعفی ورکړه، په دې وخت کې د شمال تېلواله د بګرام ډګر ته رارسېدلې وه.

د ډاکتر نجیب الله د استعفی له اعلان نه سمدستي وروسته جمعیت او د نظار شورا د عبدالرشید دوستم له قطعاتو سره له یوې خوا، او د حزب اسلامي قطعاتو د جنوبي او ختیځ لوري په کابل برید وکړ، نظار شورا او د دوستم قطعات کابل ته په ننوتو کې مخکې شول، مهم ځایونه یې په کنترول کې راوستل او خپل ځواکونه یې په کې ځای پرځای کړل. ډاکتر نجیب الله غوښتل د ملګرو ملتو په ځانګړې الوتکه کې هند ته لاړ شي، د هغه مخه یې ونیوله، هغه چاره نه درلودله، د بېنن




د کتاب د پښتني شرحه:

۱- د کمونستانو د واکمنۍ د دورې پُستي ټکټ چې په هغې کې د غوايي د کودتا (زمونږ د خلکو او هيواد د بدمرغيو پيلامه) انځورشوی ده، او د ټکټ په يوه څنډه کې د کمونستانو د نابغه تصوير هم ليدل کيږي.

۲- زمونږ د هغه يو شمېر مظلوم او بې وزله هيوادوالو د کاليو او ککريو تصويرونه چې د سرمايه دار (پانګه والو) او فيودال (ځمکه والو) په نوم د پرديو مزدورو کمونستانو لخوا ژوندي تر خاورو لاندې شوي، د دغو شهيدانو له زړو کاليو او شلېدلو چپلکو څخه په ښه توګه څرګنديږي چې غريب او بې وزله وو.

(په هرات کې د ګمنام شهيدانو له تصويرونو څخه)

## بخشی از کتب منتشر شدهٔ بنگاه انتشارات میوند (کتابخانهء سبا)

- سیرة النبیﷺ (ترجمه، فارسی الرحیق المختوم)
- تاریخ نبوت و انبیاء
- شرح قدوری
- سپیڅلی نبوی سیرت (ترجمه، پشتو الرحیق المختوم)
- پیغمبر زنجیر شکن
- فقه آسان(فارسی و پشتو)
- احکام فقهی برای زن مسلمان
- داستانهای پیامبران برای خورد سالان
- تربیت اولاد از دیدگاه اسلام
- تاریخ مسخ نمی شود
- اردو وسیاست «درسه دهه، اخیرافغانستان»
- داؤدخان در چنگالK.G.B(فارسی وپشتو)
- حیات و اوقات سلطان محمود غزنوی
- جغرافیای تاریخی افغانستان (غبار)
- جغرافیای تاریخی افغانستان(حبیبی)
- تحلیل واقعات سیاسی افغانستان
- ازسقوط سلطنت تاظهور واجراآت طالبان
- فدرالیزم و عواقب آن در افغانستان
- آسیای میانه و افغانستان درکنار آتش
- بالاحصار کابل و پیش آمدهای تاریخی
- افغانستان از امیرکبیر تا رهبر کبیر
- افغانستان تجاوزشوروی ومقاومت مجاهدین
- جنبش هزاره ها واهل تشیع در افغانستان
- نادرشاه چگونه به پادشاهی رسید؟
- محمد ظاهر شاه( فارسی و پشتو)
- وروستی مورچل
- دیوغازی داستان
- تروژمی مسافر
- محمد بن قاسم
- شاهین
- کلیسا او اور
- وروستی جگره
- قیصر او کسری (اول او دویم)
- توفان در افغانستان
- بحران ونجات
- شهید میوندوال
- کرباس پوشهای برهنه پا
- افغانستان گذرگاه کشور کشایان
- دو نابغهء سیاسی نظامی افغانستان
- دهه، قانون اساسی
- افغانستان در قرن نزده
- پادشاهان متأخر افغانستان
- نگاهی به عهد سلطنت امانی
- تاریخ روابط سیاسی افغانستان
- تاج التواریخ
- افغانستان چا ورانکړ
- محاکمه، خاینین ملی
- ابومسلم خراسانی
- مرداره قول اس
- جنگ در افغانستان
- سیر ژورنالیزم درافغانستان
- دستور معاصر زبان فارسی دری
- تاریخ ادبیات افغانستان
- سیرت خاتم النبیین
- روسیه و خاور
- افغانستان و مداخلات خارجی
- افغانستان در آتش نفت (فارسی و پشتو)
- خاطرات ظفر حسن ایبك
- اسپارتاکوس
- سیر تاریخی ضرب سکه در اسلام
- د پیغمبرانو داستانونه د نوی حوانانو...
- روابط بین الملل در اسلام
- افغانستان و پنج سال سلطه، طالبان
- شوکران در ساتگین سرخ
- واهمه های زمینی
- افغانستان تهاجم شرق و دسیسه، غرب
- افغانستان در مسیر تاریخ (دوردو جلدی)
- شیرشاه سوری
- سیدجمال الدین افغان (فارسی و پشتو)
- اسلام و امت مسلمان (فارسی و پشتو)
- ظهیرالدین محمد بابرشاه
- سیری در قرآن مجید
- کرونولوژی حوادث تاریخی افغانستان
- ملی مبارزی
- طنزهایی از چهار گوشه، جهان
- افغانستان در دایرة المعارف تاجیك
- تاریخ مقیم خانی
- د پستنو قبیلو شجری او مینی
- اور په افغانستان کی
- قیقان افغان (حقیقت تجاوز شوروی بر ....)
- د افغانستان استحکامي کلاوی حصارونه ...
- اسناد لانه، جاسوسی
- عبادات در مذهب حنفی
- کتاب الخراج (فارسی و پشتو)
- تاریخ معاصر افغانستان (فارسی و پشتو)
- د اتلانو اتل
- عشق من امریکا (فارسی و پشتو)
- و...

● د کتاب د پښتنې شرحه په (۱۸۸) مخ کې وګورئ!




## د کتاب ځانګړتیاوې:

نوم: د کابل شپې
لیکونکی (په فارسي ژبه): جنرال عمرزی
پښتو ژباړه: سید عبدالله پاچا
کمپوز او ډیزاین: عبدالغفور میرویس
د پښتنې انځور: عمر
د چاپ کال: ۱٤۲٦ هجری قمری ۱۳۸٤ هجری لمریز کال
د چاپ شمیره: ۱۰۰۰ ټوکه
خپرندوی: میوند خپرندویه ټولنه
کمپیوټر او چاپ: د میوند خپرندویه ټولنې مطبعه
کابل: د فارسي ریاست ترڅنګ، د پوهنې مطبعې ته مخامخ
ټیلفون: ۲۱۰۳٥٦۹ ، ګرځنده ټیلفونونه: ۰۷۰۲۸٤۹٥٤ او ۰۷۰۲۹٥۲۱٤
او چهارراهی صدارت، کتابخانه ء سبا ، ټیلفون: ۲۲۰۰٤٥٥
ګرځنده ټیلفون: ۰۷۹۳۲۰۳٦٦ ، پست بکس: ۱۲۷۸
پېښور: کتابخانه ء سبا ، دهګی نعلبندی، قصه خوانی بازار
ټیلفون: ۲٥٦٥٥۲۰ ، ګرځنده ټیلفونونه: ۰۳۰۰۱۸۸۸۳٥٥ او ۰۳۰۰٥۹٤٦۳۲۸
**پست بکس:** U.P.O. BOX 795
E-Mail: maiwand@asia.com

د لوی خدای په نامه

# د خپروونکي عرض

دا کتاب یو لړ حقایق او واقعیتونه په ډاګه کوي چې په وروستیو دوو لسیزو کې د خونړیو پېښو اصلي منشأ او چورلیز تشکیلوي.

په باور سره ویلای شو چې تر دم ګړۍ داسې د بحث وړ او د لومړي لاس معلوماتي کتاب نه چاپ شوی او نه د چا لاس ته ورغلی دی.

په زړه پورې دا ده چې لیکوال لکه د یوه حساس او تجربه لرونکي ژورنالست په توګه د پېښو جزئیاتو او جهت ته دقیقه پاملرنه کړې، هغه یې نوټ کړې او خپلو خاطرو او مشاهدو ته یې د یوه داستان وزمه بښه ورکړې ده.

تر دې لا هم په زړه پورې دا چې د کتاب لیکوال چې د داستان اتل باید ونومول شي په خپله نه، بلکې پېښې د ده مخه کوي او یوه په بله پسې دده په خوا راڅرخي.

په دې اثر کې ناویلي رازونه، لړزوونکي انکشافات او ددغه وخت له درد او مصیبت نه ډک پټ ساتل شوي حقایق او واقعیتونه په ډاګه شوي چې د هغې په رڼا کې کولای شو خپل پرون او نن لکه څنګه چې ؤ او دی، مطالعه کړو او جریانات په واقعي او سالمه توګه درک کړو او آشنايي ورسره پیدا کړو. څرنګه چې کتاب د یوه داسې پوځي افسر د سترګو لیدلي حالات او خاطرې دي چې په خپله د پېښو په جریاناتو کې واقع ؤ نو طبیعي ده چې د هغې معلوماتي او تاریخي ارزښ به ډېر په زړه پورې او ارزښتمن وي چې د تاریخ لیکونکو، څېړونکو او پېښو لیکونکو لپاره به د لومړي لاس د معلوماتو او د یوازیني مأخذ په توګه د استفادې وړ وي.

مونږ دا نه وایو چې په ټولیزه توګه به د کتاب شننه (تحلیل) سمه وي، خو پېښې او د پېښو په اړه د هغې څرګندونې فوق العاده تازه راوېښوونکې، جالبې او د اعتماد وړ دي چې تر اوسه له نظره پټې او پوښلې ساتلې شوې وې. مونږ د همدې مطلب په پوهېدو سره د هغې خپرولو ته لاس وغزاوه. هیله ده زمونږ هیوادوالو ته ګټور وګرځي، چې د تېر خونړي وخت سره په رابطه کې سند او دستاویزې. او د هیواد اوسنی او راتلونکی نسل لپاره د عبرت درس وي، او د هغو لپاره یو محرک او پاروونکی وي چې د تېرو دوو لسیزو په هکله رازونه او اسناد ورسره وي تر څو یې د خپرولو په برخه کې لاس په کار شي.

په درنښت

میوند خپرندویه ټولنه

بسم الله الرحمن الرحیم

# سریزه

انسان په خپل ټولنیز ژوند کې کله کله د تاریخي پېښو له داسې فشار لاندې راځي چې بشري احساسات یې هغه اړ باسي چې ټولې ټولنیزې ناخوالې او په سترګو لیدلي مظالم پرته له ویرې او سیاسي ملاحظاتو هغه څه یې چې لیدلي او احساس کړي ووایي.

که څه هم زه کوم تاریخ لیکونکی، لیکوال او ژورنالست نه یم خو احساساتو اړ باسلی یم، هغه څه مې چې د ۱۳۵۷ د ثور کودتا د پېښو په جریان کې لیدلي او احساس کړیدي څه اندکه برخه یې ولیکم، ترڅو چې مې د خپل وجدان غږ ته لبیک ویلی وي او د هیواد ځوان نسل ته مې د هیواد د خدمت په لاره کې ګټور واقع شي.

په دې اثر کې له هغو واقعیتونو څخه یادونه شویده چې د ثور د کودتا او د کابل د څرخي پله په زندان کې د دندو په جریان کې او د هغې له تور سره مخامخ وم چې د دانه وانه یادښتونو په توګه مې له یوه او بل ځای نه راټول کړي وو او اوس مې دا ځواک وموند چې هغه د یوې رسنۍ په ډول هغه لړۍ کړم او په (پنځو) خپرکو کې یې سره راټول کړم.

له ویلو دې پاتې نه وي چې اکثره یادښتونه مې څه په زندان کې او څه له زندانه بهر د پټو پولیسو له تعقیب او ویرې نه ورک او له منځه تللي دي.

کله چې د پل څرخي له زندان څخه خوشې شوم، یوه ورځ د کابل پوهنتون استاد حسن کاکړ زما د مرحوم پلار د دعا لپاره زما کور ته تشریف راوړی ؤ، زما یادښتونه یې د لوستلو لپاره له ځانه سره یوړل او ددې رسالې په بشپړېدو کې یې راته لازمه لارښوونه او ګټورې مشورې راکړې چې د هغوی د تشویق او هڅونې له مخې دا دی په دې بریالی شوم ترڅو خپل راجمع کړي د وطنوالو خدمت ته وړاندې کړم. له تشویق او عالمانه لارښوونو څخه یې مننه کوم.

جنرال عمرزی

لومړی څپرکی:

# د میر اکبر خیبر وژل، په کابل ښار کې د خلکو لاریون، د خلق او پرچم د مشرانو بندي کول، د کینو سیاسي جریانونو په وړاندې د دولت تصمیم او د یو حزبي رژیم جوړول

د سردار محمد داؤد په رژیم کې د لویې عنعنوي جرگې په تصویب نوی اساسي قانون منځ ته راغلی ؤ چې په هغې کې ټول هغه سیاسي جریانونه چې د محمد ظاهرشاه په زمانه کې یې تخم کرل شوی و او د سلطنت په وروستی لسیزه کې سیاسي جریانونو ښی او کیڼ اپوزیسیونونه جوړ کړل او په څرگنده یې فعالیت پیل کړی ؤ لغوه او ناقانونه وشمېرل، خو ددې سره سره د ټولو سیاسي احزابو د افغانستان د خلق دیموکراتیک گوند، اخوان المسلمین، مساوات، افغان ملت، شعلهء جاوید او د نورو پټ فعالیتونه بند نه شول او په پټه توگه یې فعالیت کاوه، او د تعلیمي مؤسسو لکه پوهنتون، کارگري برخو، دولتي ادارو او د اردو او پوځي قطعاتو په برخه کې یې جذب او جلب کاوه.

میر اکبر خیبر چې د اردو له صاحب منصبانو څخه و، او له حربي پوهنتون څخه د فارغېدو په وروستیو ورځو کې د سیاسي کمونستي نظریې د درلودلو له امله بندي شوی ؤ، له پنځه کاله بند وروسته خوشې شو. له اردو څخه وایستل شو او د پولیسو په اکادمۍ کې یې د استاد په حیث دنده ترسره کوله. د پولیسو په اکادمۍ

سیوان د مرستیال په واسطه په کابل کې د ملګرو ملتو د دفتر ته راوستل شو ترڅو هلته پناه واخلي.

د ملګرو ملتو پنځه نکته ییزه پلان چې په لانجه کې د ښکېل دواړو خواو لخوا د پرله پسې څو میاشتو خبرو اترو په نتیجه کې د منلو وړ ګرځېدلی ؤ پخوا له دې چې په بشپړ ډول عملي شي، د شمال د ائتلافي ټلوالی د کودتا له امله چې د ببرک کارمل په مشرۍ د جنرال دوستم، جنرال مؤمن او جنرال سید جعفر نادري په موجودیت کې ترتیب شوی وه شنډ او خنثی شو.

که د ملګرو ملتو پلان عملي شوی وای په ریښتیا سره په افغانستان کې سوله رامنځ ته کېدله او ډاکتر نجیب الله هم د هیواد د سولې په لاره کې ویاړ ګټېلو، خو مخالفینو او سیالو یې نه غوښتل چې دا پروسه عملي شي، د غچ اخستلو او قدرت غوښتنې په اساس یې د هیواد ارضي تمامیت له ګواښ سره مخ کړه او د سولې منل شوی پلان یې شنډ کړه، چې دا دی زموږ هیواد خپل ټول مادي، معنوي، ملي او بین المللي ارزښتونه له لاسه ورکړی او زموږ ګډ کور د کورنیو او بهرنیو عواملو له امله په کنډوالو بدل شوی او د کورنیو جګړو په اور کې سوځي. زما په اند دا ټولې ورانۍ، بې کورۍ، مهاجرتونه او له هیواد نه د تېښتو او ځاني او مالي زیانونه، راتلونکی نسل نشي کولای چې ټولې جبران کړي.

افغانستان شپاړس کاله د جګړو په لمبو کې وسوځېد او هرڅه یې له لاسه ورکړل. د لویدیز او ختیځ زبر ځواکونو او بېلابېلو کورنیو عواملو زموږ په هیواد کې یوه غمیزه رامنځ ته کړه چې تاریخ به وربانديې قضاوت وکړي او د هیواد راتلونکی ځوان او خواخوږی نسل به د خپل پلرنی ټاټوبی کورنی او بهرنی دښمنان وپېژني، د دې وطن د زرګونو بچو د وینو انتقام به یوې خواته کړي، د توپیر ټول ډولونه به چې زموږ دښمنانو ورته لمن وهلې ده له پامه وغورځوي، د هیواد د ودانۍ او بیا رغاونې لپاره لاسونه سره ورکړي او لکه د خپلو نیکونو په شان یو ځل بیا نړیوالو ته وښیي چې افغانانو ته خپل وطن خوږ او ګران دی.

پای

لپاره د پولي تخنيک له ليليې څخه زمونږ کور ته راغي، زه ستا په اختيار کې يم خو دغه دوه مبلسانه پربږده چې خپلې ليليې ته لاړ شي. که څه هم محمد نعيم څارنوال له دې وړانديز سره موافقه ونه کړه، خو ما په خپل آمرانه مسئوليت سره دوی ته اجازه ورکړه، خو وروسته معلومه شوه چې هغوی محصلين نه وو بلکې يو انجنير محمد ظريف ؤ او بل فقير محمد فقير ؤ چې وروسته بيا د امين په رژيم کې د مخابراتو او بل د کورنيو چارو وزيران وو. هغوی ولاړل او مونږ کور ته ننوتو. د امين په وړاندې مو د کور تالاشي پيل کړه. يو زيات شمېر حزبي کتابونه او نشرات، يو ميل هسپانوی تمانچه چې قطر يې ۶.۳۵ ملي متره ؤ، په الماری کې يو سلو څلور څلويښت زره افغانۍ نغدې، کتابونه او د حق العضويتونو له يو لست سره لاسته راغلل. دا ټول مې د محضر په پاڼه کې درج او تشريح کړل. په يوه خونه کې چې ښځې وې نه وه تالاشي شوي او بايد تالاشي شوې وای، خو امين وړانديز وکړ چې په دې کوټه کې زما ميرمن، زما پيغلې لوڼې، زما له سپين سرې خواښې سره چې ناروغه ده استراحت دي، داسې کوم کتاب او يا اسناد چې ستاسو د علاقې وړ وي، هلته نشته، خو بيا هم له تاسو څخه يو تن کولای شي دغه خونه وپلټي.

زه د ګروپ په استازيتوب له حفيظ الله امين سره يوځای اتاق ته ننوتم، د امين ښځې چې لوی څادر يې پر سر ؤ په خپله بستره کې ناسته وه او لورګانې يې په خپلو بسترو کې ويدې وې. سپين سرې ښځه په بستره کې استراحت وه خو ويښه وه. ورور يې عبدالله امين هم په خپله بستره کې موجود ؤ چې ګومان کېده ځان يې په زوره ويده کړی ؤ. ښځې يې هم په بستره کې کمپله اغوستې وه. ما ډېر په احتياط او خاموشۍ سره د کوټې الماری سرسري معاينه کړه، له کتابونو سره کومه وسله نه تر سترګو کېدله او له اتاق نه راووتم. په عبدالله امين مې هم ځان ناګاره کړ «چې ګڼې نه مې دی ليدلی» که نه هغه هم بايد د محضر په پاڼه کې درج شوی او نيول شوی وای.

کله چې د محضر پاڼه وليکل شوه، د ګروپ او په خپله حفيظ الله امين لخوا لاسليک شوه، کتابونه او اسناد وروسته له دې چې فهرست شول په دوه بوجيو کې

واچول شول، په دې وخت کې د کوټې په یوه کونج کې یو دیپلوماټ لاسي بکس چې نمره لرونکې قفل ؤ رته پروت و ترسترګو شو. امین ته مې وویل دا لاسي بکس خلاص کړه، په دې وخت کې امین یو څه فکر من شو خو هیڅ یې ونه ویل، بکس یې بېرته کړ او ویل یې په دې کې د دوستانو لیکونه او زما د نوي کور د لګښت اسناد پراته دي. ورته مې وویل هیڅ باک نلري، خپل شخصي اسناد له ځانه سره واخلئ. په دې وخت کې امین یوه پاڼه په نوکو شوکو په ډېره بیړه له بکس نه واخیستله، ویې شلوله او په خوله یې کړه او ویې ژوله. غږ مې ورباندې وکړ چې په دې پاڼه کې څه وو چې په خوله دې کړه، باید لیدل شوې وای، ویې ویل: زما د یو شخصي دوست لیک ؤ کومه مهمه پاڼه نه وه، خو بیا هم ځارنوال غوسه شو، خو ما کومه اعتناد ونه کړه ځکه چې پاڼه له منځه وتلې وه. مونږ د یو ترسره شوی کار سره مخ وو. په هغه وخت کې داسې تصور کېده چې بنایي د حزب د فعالینو لست او شهرت به ؤ چې مونږ په دغه وخت کې ورسره څه کار نه درلود، نور کاغذونه چې په بکس کې پاتې وو، یو شمیر یې د دوستانو خطونه او یو شمېر یې د نوي کور د لګښت صورت حساب ؤ چې پلاوي ورسره کومه دلچسپي نلرله.

## د ژول شوې پاڼې په اړه انګېرنه او د تالاشۍ په شپه د امین وروستنۍ هیله:

ټولو افغانانو ته جوته ده چې د د. خ. ا. ګوند د ۱۳۴۳ هـ ش کال د مرغومې په میاشت کې جوړ شوی او د مشرتابه پلاوي او مرکزي کمیټې په لومړنۍ غونډه (پلینوم) کې نور محمد تره کی د لومړي منشي او ببرک کارمل د دوهم منشي په توګه ټاکل شوی وو، خو دغه دواړه کسان د حزب له جوړېدو وړاندې د لومړۍ چوکۍ د لاس ته راوړو لپاره په سیالۍ کې وو. دواړه د شخصیت پرستۍ او د ځان غوښتنې د نظر خاوندان وو. له همدې کبله یې د مرکزي کمیټې په ګروپ کې پلویان درلودل او په سیالۍ سره د ګوند د لومړي مقام غوښتونکي وو. حفیظ الله امین چې په امریکا کې د افغاني محصلینو د ټولنې رئیس او د خپلو زده کړو له سرته رسولو

وروسته تازه کابل ته راغلی ؤ ، له دې امله چې له تره کي سره یې له وړاندې نه پېژندګلوي لرله او د حزب په مرکزي کمیټه کې یې د کارمل له مخالفتونو سره سره غړیتوب لاس ته وروړی ؤ ، امین له همغو ورځو څخه په حزب کې دننه د کارمل او تره کي ترمنځ اختلافاتو ته لمن وهله ، تردې چې د حزب د جوړېدو له همغو لومړیو ورځو څخه د حزب د مشرتابه پلاوي په داخلي کړیو کې اختلافات رابرسېره شول او په ډېر مرموز ډول یو د بل په وړاندې یې صف جوړولو. د تره کي پلوي ګروپ د ګوند په کړیو کې داسې تبلیغات په لاره اچول چې ګنې کارمل او پلویان یې د سلطنت د دربار جاسوسان او د کارمل پلار جنرال محمد حسین خان د محمد ظاهرشاه د اعتماد وړ او یو له پیاوړو قوماندانانو څخه دی. څرنګه کېدای شي چې زوی یې د کمونیستي ګوند بنسټ ایښودونکی او د سلطنت مخالف وي.

همدا راز د ببرک کارمل پلویانو داسې تبلیغات کول چې تره کي او امین دواړه د امریکا د متحده ایالاتو د جاسوسي سازمان لخوا روزل شوي دي. دلیل یې دا و چې تره کي پخوا په امریکا کې د افغاني سفارت یو کارکوونکی ؤ او امین څو کاله په امریکا کې د افغاني محصلینو د اتحادي ټولنې رئیس ؤ. دا څرنګه کېدای شي چې هغوی دې له امریکا څخه له کمونیستي نظریې سره افغانستان ته راستانه شوي وي او د امریکا ضد د یوه ګوند د جوړولو لپاره ریښتیني فعالیت وکړي. په یو بل باندې د دغسې تورونو په لګولو سره چې په یوه واحد حزب کې او د یوې واحدې اساسنامې او مفکورې په لرلو سره ترسره کېدل، ډېر ژر په د . خ . ا . ګوند کې د انشعاب او ټوټه کېدو باعث وګرځېد چې د تره کي د پلویانو لکه صالح محمد زیری ، پنجشیري ، ډاکتر شاه ولی ، حفیظ الله امین ، اسماعیل دانش ، کریم میثاق او نور ګروپ د خلق ډلې او د کارمل د پلویانو لکه سلطانعلي کشتمند ، میر اکبر خیبر ، نور احمد نور ، ډاکتر نجیب الله ، سلیمان لایق ، بارق شفیعي او نورو ګروپ د پرچم ډلې په نوم د د . خ . ا . د ګوند د یوې واحدې اساسنامې څخو د کړنلارې او عمل په توپیر سره یو د بل په مقابل کې ودرېدل.

که څه هم دواړه ډلې د اتحاد شوروي د کمونستي ګوند لخوا رهبري کېدلې ،

تقویه کېدلې او مرستې ورسره کېدلې خو د دغه تړتیه کېدو او انشعاب په وړاندې یې له عارفانه تجاهل څخه کار اخیست، خاموشي یې غوره کړه او د دواړو ډلو ملاتړ یې کاوه او تر خپلې سینې لاندې یې نیولې وو.

د اتحاد شوروي کمونست گوند په ټوله نړۍ کې خپل گوډاگي کمونستي گوندونه د دوه درې ببلابېلو گوندونو په بڼه یو له بله جدا ساتل ترڅو په بڼه او آسانه توگه د روسانو د نهایي هدف او موخې لپاره ښه سیالي او خدمت وکړي. روسانو هم د هغوی په تړتیه کېدو او انشعاب باندې د یو وخت لپاره خاموشي اختیار وله او په پټه یې هرې ډلې ته حق په جانب ویله او په یو ځانگړي وخت کې به یې دواړه خواوې یو موټی او یو ځای کولې او لکه چې ولیدل شول چې قدرت ته د د. خ. ا. حزب له رسېدو مخکې او وا ک ته له رسېدو وروسته د روسي سلاکارانو په شتون سره څو څو ځل اتحاد نیمگړی او تاکتیکي انشعاب کړی ؤ.

له موضوع نه لرې نه ځم د ژول شوی او شکول شوی کاغذ په برخه کې چې امین په ډېر مهارت سره له خپل ډیپلومات بکس څخه واخیست، ویې ژولو او تیر یې کړ له یو ترسره شوی عمل سره مخ کړو، په څرگنده مې په هغه غوسه وکړه او و مې رټلو، خو د دغې پاڼې په اړه مې دوه ډوله انگیرنه لرله:

یو دا چې ښایي د سي. آی. ای له جاسوسي سازمان سره له همغو ارتباطي مهمو او پټو پاڼو څخه یوه پاڼه وه چې په اړه یې د پرچم ډلې د هغوی پر ضد تبلیغات کول. دوهم دا چې، ښایي دغه پاڼه به د حزب د فعالو او مهمو کادرونو لست او شهرت وه چې باید د پولیسو لاس ته نه وای ورغلی، په هرصورت له دې کبله چې زه هم په هغه وخت کې د دولت په دستگاه کې دننه د حزب له مخفي غړو څخه وم، له بله پلوه د خلق او پرچم ډلو په دغه وخت کې اتحاد کړی ؤ، که څه هم امین زما د حزبیتوب په اړه کومه اطلاع نه لرله خو زه چې د یو انجام شوی عمل ترشا واقع شوی وم، په دې اړه مې ډېر ټینگار ونکړ او دا موضوع مې سرسري وگڼله او د محضر په پاڼه کې مې د هغې په اړه له راپور او یادونې څخه صرف نظر وکړ.

د تالاشۍ او د محضر د پاڼې د بشپړېدو کار د شپې د ۳:۳۰ بجو په شاوخوا






کې پای ته ورسېد. په دې وخت کې امین له خپلې الماری څخه ناخن گیر راواخیست او د خپلو نوکانو په پرېکولو بوخت شو او مونږ ته يې وويل: تاسو ډېر ستړي شوي یاست، اوس مهرباني وکړئ په همدې کوټه کې کښېنئ چې چای وڅښنو. ما ورته وويل: زمونږ کار پای ته رسېدلی، اوس نو که تاسو کوم شکایت لرئ چې زمونږ د ملگرو د بې احتیاطۍ له امله د کور سامان یا چیني لوښي مات یا ښځایه شوي وي حق لرئ چې په څرگنده ووايئ، اوس چې مونږ ستاسو له کوره وځو، د شک په صورت کې تاسو حق لرئ زما په گډون زمونږ د گروپ افسران او کسان هريو بېل بېل تالاشي کړئ او خپل شک اوباسئ، پرته له دې سبا ته بیا د شکایت حق نه لرئ. دا ټولې خبرې زما په جیب کې په موجود میکرو کیسټ کې ثبت کیدلې.

امین په عاجزۍ او موسکا سره ماته وويل: تراوسه دې زما دوه وړاندیزونه منلی دی، يو دا چې هغه دوه تنو محصلینو مېلمنو ته دې اجازه ورکړه چې خپلې لیلیې ته لاړ شي، دوهم دا چې د ښځینه و خونې ته ټول گروپ داخل نشو، د ښځو او ناروغانو د زحمت باعث نه شول یوه نوې منه کوم.

دریم وړاندیز دا دی چې اوس شپه ډېره تېره شوې او گهیځ ته کم وخت پاتې دی او تاسو هم ستومانه شوي یاست، په همدې کوټه کې کښېنو او چای وڅښنو، سبا کیږي او د ورځې په رڼا کې سهار په ۷ بجو یوځای قوماندانۍ ته ځو.

ما چې ددغه کار واک نه درلود او بل دا چې سهار ته دوه ساعته وخت پاتې ؤ، د تشناب په پلمه له کوټې نه ووتم، مخابره لرونکی موټر ته ورغلم، د امنیې قوماندان ته مې په مخابره کې وويل: د امین د کور د تالاشي کولو کار پای ته رسېدلی، د ۲-۳ بوجیو په اندازه کتابونه، نشرات او اسناد او یوه تومانچه لاس ته راغلی ده، خو اوس ستونزه دا ده چې که بوجۍ له ځانه سره وړو، په موټر کې ځای نشته، که امین له ځانه سره بیایو، اسناد به څنگه کوو، د پولیسو ماموریت هم د امین د کور ترڅنگ دی، که امین ترسبا سهار ۷ بجو پورې په خپل کور کې د سست د ماموریت تر څارنې لاندې پرېږدو، په دې اړه ستاسې لارښوونه څه ده؟ له دې امله چې قوماندان هم په قرارگاه کې ډېر مصروف ؤ ځکه سلیمان

لایق او بارق شفیعي تر دغه مهاله نه وو موندل شوی، د پولیسو ټوله دستګاه هر لوري ته لالهنده او سرګردانه وه او د امینې قوماندان هم اندېښمن ؤ، په دې اړه یې کوم تصمیم ونه نیولای شو، په دې اړه یې د هرې پرېکړې مسئولیت زما په غاړه واچاوه او له مخابرې ووت.

ببرته کوټې ته لاړم، امین ته مې وویل ستا دریم وړاندیز چې ډېر مهم دی، په خپل مسئولیت یې په دې شرط قبلوم چې په راتلونکی کې له کومې لانجې سره مخامخ نشو. امین چې ډېر هوښیار او د تېز هوش خاوند ؤ، په دې پوه شو چې زه څه وایم، په خندا یې وویل: زه دومره ناځوانه نه یم چې د تیښتې او پټېدو له امله تا ته ستونزه پیدا کړم. ما چې دا لاره ځان ته غوره کړې ده له بند او نیولو څخه نه وېرېږم. که ما تېښته کولای نو د شپې په لسو بجو ماته اطلاع راورسېده چې د ګوند مشران یو په بل پسې نیول کېږي، په ډېره آسانۍ مې کولای شول چې ځان غاړې ته اوباسم، ځکه هغه مهال تاسو نه وئ راعلی، کور مې محاصره نه ؤ، زه ونه تښتېدم. اوس چې تاسو راسره ډېر انساني سلوک وکړ او زما ټول وړاندیزونه دې ومنل، زه به هېڅکله تا په لانجه کې وانه چوم، تاسو پوره باور ولرئ چې زه به د خپلو دوستانو په وړاندې ناشکره ونه اوسم.

ما د پولیسو مامور فدا محمد ته دنده وسپارله چې د سبا سهار تر ۷ بجو پورې دې د پولیسو په واسطه له بهر څخه د کور محاصره لکه د اوس په شان جاري وي. پخپله د پولیسو مامور دې په کور کې د ننه له امین سره وي، سبا په اووه بجې زه ټیلفون کوم، بیا د ماموریت په جیب کې راوځېږي.

په دې وخت کې امین ډېر زیات خوشحاله شو او یوځل بیا یې له ټول ګروپ بالخصوص له ما څخه تشکر او مننه وکړه. د پولیسو مامور ته مې دنده ورکړه چې تر سهار ۷ بجو پورې هېڅوک له کوره وتلی او یا رانوتلی نشي. ښوونځي ته د خپلو اولادونو د تللو په اړه امین وپوښتل، په جواب کې مې ورته وویل: ښوونځي ته د اولادونو د تګ مخه نه ده نیول شوی خو ته په خپله له کوره نشې وتلی.

په دې وخت کې له ترلاسه شویو پیسو څخه چې یو سلو څلور څلویښت

زره افغانۍ وې هغه د يوځو پيسو بېرته غوښتنه وکړه. که څه هم په محضر پاڼه کې ثبت شوې وې، څلور زره افغانۍ مې بېرته ورستنې کړې او په محضر پاڼه کې يې په خپله وليکل او لاسليک وکړ. د شپې په ٣:٤٥ بجو مې له امين سره خداى پاماني وکړه، د خپلې قرارگاه په لوري مو حرکت وکړ او حفيظ الله امين د غه شپه يعنى د ١٣٥٧ کال د ٦/٥ نېټې د چارشنبې شپه په خپل کور کې تېره کړه. په همدې شپه د امين لخوا د بنستيز وسله وال پاڅون فعاليت ترسره شوی ؤ چې دولت او د پوليسو دستگاه له هغې څخه خبرتيا نه لرله چې په خپل ځاى کې به ورڅخه بيا يادونه وکړو.

## د چارشنبې ورځ د ١٣٥٧ کال د غوايي ٦مه:

کله مې چې د امين کتابونه، اسناد او تومانچه له ځانه سره د امنيې قوماندانۍ ته راوړل، نو د شپې څلور بجې وې. ډېر ستړى او بې خوبه وم، د تالاشۍ اسناد او ٣ بوجۍ کتابونه مې د محضر له پاڼې او نغدو اخيستل شويو پيسو سره مؤظف شخص ته وسپارل او د يو دوه ساعتونو استراحت لپاره خپل دفتر ته لاړم. د تيلفون د لين پلک مې وايست، کوټه مې له دننه څخه کلپ (قفل) کړه، او په کوچ باندې په داسې حال کې چې يونيفورم مې په تن ؤ څملاستم. لږ وروسته په درو ند خوب ويده شوی وم. سهار ته د دروازې په ټک ټک راويښ شوم. اته بجې وې چې د امنيې د قوماندان حاضرباش راويښ کړى وم. د امنيې د قوماندان دفتر ته ورغلم، د شپې د عملياتو او کړنو په اړه مې ورته گزارش تېر کړ. د امنيه قوماندانۍ له دفتر څخه مې د پوليسو مامور فدا محمد ته وويل، چې شخصاً امين په جيپ موټر کې په خونديتوب د کابل نظارتخانې ته حاضر کړي، او په اووم نمبر اتاق کې چې له مخکې نه ورته تيا کل شوی ؤ بندي شو.

امين د نورو سياسي بنديانو برعکس، خوښ، ډاډه او آرام ښکاربده. ماته يې وويل: دا دى ستاسو مسئوليت رفع شو، نظارتخانې ته حاضر شوم. يوځل بيا يې د تېرې شپې د مرستې او نرمۍ له کبله له مانه مننه وکړه. زه نه پوهېدم چه دا څه

مرسته ده چې د امین لپاره د بیا بیا منني او تشکر وړ ده. ما کوم ځانګړی او فوق العاده مساعدت له ده سره نه ؤ کړی، کور مې ورمحاصره کړی ؤ، د کور تالاشي مې اخیستی وه، سلاح، نغدې پیسې، کتابونه او اسناد مو مصادره کړي وو، دی مو هم بندي کړ. خپله دنده مو ترسره کړې وه، خو ددې سره سره امین له تالاشۍ نه وروسته په خپل کور کې د یو څو ساعتونو لپاره په پاتې کېدو سره هغه هم د ماموریت د پولیسو تر څارنې لاندې ډېر مشکور ؤ، وروسته چې بیا یې په خپله خوله راته وویل، ریښتیا هم چې پرته له خبرتیا څخه په ناخبرۍ کې مې ورسره ډېره قیمتي مرسته کړې وه.

## د خلق او پرچم د بندیانو د سرپرست په توګه نوې دنده، د توقیف خانې مقررات او له بندیانو سره چلن:

د چارشنبې په ورځ د ۱۳۵۷ کال د غوایي په ٦ مه نېټه د امنیې د قوماندان یو سر پټی خاص او راساً مکتوب راورسېد، چې په کې راته لارښوونه شوې وه چې په خپله اصلي دنده سربېره د کابل په نظارتخانه کې د سیاسي بندیانو د دوسیو د فیصله کولو او د پلټنو تر پایه رسېدو پورې، د بندیانو د سرپرست په توګه هم دنده ترسره کړم او د مکتوب د رارسېدو سره سم خپله دنده اشغال کړم. له مکتوب سره مل د ۲۷ تنو افسرانو لست چې زما تر امر لاندې راکړل شوی وو، چې د نظارتخانې په دننه کې د هر بندي د ساتنې لپاره په ۲٤ ساعتونو کې ۳ تنه افسران د هغه پلان له مخې چې زه یې ورته ترتیبوم په دنده ګمارل کېدل، او همدا رنګه د سیاسي بندیانو په اړه یو ځانګړی لارښودنه شوې وه چې غوره ټکي یې داسې ښودل شوي وو:

۹ تنه سیاسي بندیان هریو نور محمد تره کی، ببرک کارمل، دستګیر پنجشیري، عبدالحکیم شرعي جوزجاني، ډاکتر شاه ولي، حسن ضمیر صافي، حفیظ الله امین، بارق شفیعي او سلیمان لایق دې په ترتیب سره له ۱-۹ په جدا ډول وساتل شي. بندیان په هېڅ ډول یو له بل سره تماس نشي نیولی، ان چې د رفع

حاجت پر مهال د تشناب تللو ته باید یو یو تن ته د تگ اجازه ورکړل شي. له بهر نه دوستان او خپلوان د پایوازانو په نوم په مستقیم ډول یا غیر مستقیم ډول د لیک او ټیلفون له لارې له بندیانو سره اړیکې نشي ټینګولی. د هر ډول خوړو، درملو، میوو، سګرټ او نصوارو راوړل بندیانو ته د خپلو فامیلونو لخوا مجاز نه دي. بندیانو ته د شپې او ورځې خواړه د دولت لخوا ورکول کېږي. دوه تنه آشپزان د آشپزۍ له سامان سره او یو تن سماوارچي له اړوند سامان سره په ځانګړي ډول نظارتخانې ته ورپېژندل شوي وو چې د یوې ځانګړې تابلو ترمخه د مؤظف ډاکتر د لارښوونې سره سم روغتیایي خواړه ورته برابرېږي. دوه تنه ډاکتران یو د سهار لخوا او بل د ماښام لخوا بندیان معاینه کوي او په صحي بولتین کې ورته درمل او خواړه تثبیتوي، خو درمل د مسئول سرپرست په واسطه په هر وخت کې د هر تن لپاره ورکول کېږي او د ډاکتر په مخکې خوړل کېږي. اضافي درمل د ناروغ بندي په کوټه کې نه ساتل کېږي، یعنی د ساتلو اجازه نلري. د اړتیا په وخت کې د ډاکتر د هدایت سره سم د مؤظف افسر لخوا اقدام ترسره کېږي. چاقو، چاړه، د ږیرې خریلو پاکي، ناخن ګیر، ښیښه، ډبره، نکټایي، ملاوستې، پطلون، لو داسې نور شیان چې د ځان وژلو خطر لري، بندي یې له ځانه سره نشي ساتلی.

محمد ابراهیم د نظارتخانې آمر او د هغه مربوطه پرسونل به زما د دندې تر پایه پورې زما تر اغیز لاندې وظیفه اجرا کوي. د مکتوب او لارښوونو تر لوستلو وروسته نظارتخانې ته لاړم او د سیاسي بندیانو مهمه او له خطره ډکه دنده مې اشغال کړه.

## د کابل په ځارځای (نظارتخانه) کې:

کله چې د نظارتخانې دروازې ته ورغلم، لومړی ځارن محمد ابراهیم چې له وړاندې نه زما له نوې دندې څخه خبر ؤ په دروازه کې زما هرکلي ته ولاړ ؤ. د نظارتخانې موجوده لنډ راپور یې داسې راته وواېه چې نور محمد تره کی، ببرک کارمل، دستګیر پنجشیری، ډاکتر شاه ولي، حسن ضمیر صافي، حفیظ الله امین

ټول اووه تنه سیاسي بندیان په ترتیب سره له ۱-۷ نمبر کوټو کې موجود دي. دوه تنه آشپزان له اړوند لوازمو سره او دوه تنه سماوارچیان له اړوندو سامانونو سره دندې ته حاضر شویدي.

په کوټه کې دننه د برېښنا ساکټونو، برېښنايي جریان پرېکړ شوی دی، بندیانو ته کمپلې، بسترې، روجايي او څپلکې توزیع شوي دي. د سیاسي بندیانو ۲۷ تنه ساتونکي افسران حاضر شوي او په دفتر کې ستاسو د خبرو انتظار کوي.

د نظارتخانې دفتر ته ورغلم. د بېلابېلو ادارو لکه جنايي، د سمت د مامورینو او اداري څانګو افسران راټول شوي او په نظارتخانه کې توظیف شوي وو، ورو پېژندل شوم. د سیاسي بندیانو د ساتنې او د نظارتخانې د مقرراتو په اړه مې ورته ځرګندونې وکړې. په جدي ډول مې د هغوی پام دې ته راواړاوه چې د هغوی تر څارنې لاندې سیاسي بندیان مهم سیاسي شخصیتونه او زمونږ د ټولنې وتلي انسانان دي. مونږ افسران د هغوی د سیاسي جرمونو په مسئولیت او نه مسئولیت باندې هېڅ کار نلرو، او ترڅو پورې چې دلته تر نظارت لاندې دي باید ناپیلي او بېطرفه ورسره وشي. وهل ټکول، سپکاوی چې په محبسونو کې له ځینو جنايي بندیانو سره د مؤظفینو لخوا ترسره کېږي دلته په غوڅه توګه منع دي. له دې کبله چې لارښوونه شویده چې په تجرید کې دې وساتل شي او په خپل منځ کې دې تماس نیولو او له خپلو خپلوانو او دوستانو سره له تماس نیولو څخه وساتل شي نو دا هدایت باید په جدي توګه عملي شي.

ټول افسران چې په نظارتخانه کې دننه دنده ترسره کوي بې وسلې دي، هیڅوک غوځوونکي او اور غورځوونکي وسله داخل ته نشي راوړلی. د نوکریوالۍ جدول مې چې جوړ کړی دی ۳ تنه په ۲٤ ساعتونو د دروازې په خوله کې د ساتنې او پیره کولو دنده ترسره کوي. هېڅوک نشي کولای چې په خپل سر د خپلې ساتنې او پیره کولو نوبت له یو اتاق څخه بل اتاق ته تبدیل کړي.... بیا مې په ترتیب سره له لومړي اتاق څخه تر ۷ نمبر اتاق پورې بندیان وکتل او د هغوی بسترې مې معاینه کړې، او د هرې کوټې ۳=۳ تنه مسئولین مې ورو پېژندل. ټولو بندیانو چې په خپلو

اتاقونو کې د همېش لپاره الچک وو شکایت درلود ، رېښتیا هم چې ستونزمن کار دی ، الچکونه نکلي (جرمنی) وو او هر یوه دوه دوه کونجیانې لرلې. یوه یوه کونجي مې مؤظف افسر ته وسپارله او ځانګړی لارښودنه مې ورته وکړه چې یوازې د لوړو چارواکو او آمرانو د لیدلو په مهال بندیان الچک کړي. پرته له هغې باید یو لاس خلاص وي ، له دې امله چې زه هم متأسفانه د غه مهال د حزب مخفي غړی وم ، په خپل مسئولیت مې دا کار جایز وباله ، که څه هم بندیانو زه د ګوند د غړي په حیث نه پېژندم او ما هم حق نه درلود چې هغوی ته ځان وروپېژنم ، خو ترکومه ځایه چې شونې وه له هغوی سره مې مرسته کوله. افسوس چې په هغه وخت کې پوهیدلې چې د سیاسي قدرت د ترلاسه کولو په مهال له هغوی څخه څه فساد پورته کېږي ، زمونږ هیواد له څه کړاو سره مخ کېږي ، خو افسوس چې هغه وخت هېڅوک نپوهېدل چې هغوی د چا مزدوران دي ، آزادي ، کار ، استثمار ، کور ، ډوډۍ ، کالي ، عدل ، برابري او مساوات هغه جملې وې چې هرڅوک یې خوښوي او دا شعارونه اوس هم په زړه پوری دي ، خو افسوس چې هغوی د دغو شعارونو پرضد عمل وکړ.

دوه تنه بارق شفیعي او سلیمان لایق لاهم نه وو نیول شوی. د اووه تنو لپاره فوق العاده خواړه د پسه غوښه ، نرۍ ښې وریجې ، سپینه ډوډۍ ، دوه ډوله تازه میوه د غرمې او د شپې په ډوډۍ کې هغوی ته حواله شوی وه ، چای او سګرټ د هغوی د خوښې سره سم ورکول کېدل.

## د پلټېنو پیل او د نور محمد تره کی د نه خوړو اعتصاب:

سیاسي بندیانو د چارشنبې شپه او د چارشنبې ورځ پرته له پوښتنو ګروېږنو په نظارتخانه کې په بېغمۍ سره تېره کړه. د سهار په سبا ناري کې شیدې ، چای او کلچې ، د غرمې لخوا د پسه غوښه ، اعلی وریجې ، تازه میوه او سپینه (خاصه) ډوډۍ او د شپې لخوا د پسه د غوښې قورمه ، سپینه ډوډۍ او تازه میوه ورکول کېدله. د چارشنبې د ورځې په مازدیګر د مؤظف ډاکتر لخوا د تره کی د غذایي سیستم په روغتیایي بولتین کې پرته له پیازو او غوړو هدایت ورکړ

شوي ؤ چې پرته له غوړو د غوښې او پالکو او د منو توصیه شوي وه خو د لوژستیکي تعامل ترمخه دغه توصیه د پنجشنبې د ورځې له سهار څخه تطبیقېدله. د ۲٤ ساعتونو خواړه د همغې ورځې د سهار په تابلو کې تثبیتېږي او د هغې له مخې حواله او اجرا کېږي.

مازدیگر مهال د امنیې قوماندان راته وویل کیدای شي نن شپه د پلتنې پلاوي د عدلیې وزارت او د لویې څارنوالۍ، د کابل ولایت د څارنوالۍ دفتر ته راشي. له نور محمد تره کی، ببرک کارمل، عبدالحکیم شرعي جوزجاني څخه پلتنې کوي. باید د اړوندو ساتونکو په واسطه په جلا جلا ډول چې په لاره کې سره یوځای نشي، کله چې هیئت په کار پیل کوي له کوم شخص څخه چې پلتنې کوي ورته واستول شي. د شپې په ۸ بجو د کابل ولایت د څارنوالۍ دفتر لخوا راته په تیلفون کې وویل شول چې ۳ تنه نور محمد تره کی، کارمل او جوزجاني راحاضر کړئ. د اړوندو ساتونکو په واسطه مې هریو بیل بیل د پلاوي حضور ته حاضر کړل. پلتنې پیل شوې او زه بېرته نظارتخانې ته راستون شوم، نورو بندیانو ته د شپې ډوډۍ توزیع شوه.

د ۱۲:۳۰ بجو په شاوخوا کې مؤظف نوکریوال خبر راکړ چې نور محمد تره کی د خوړو اعتصاب کړی او ډوډۍ نه خوري. کوټې ته ورغلم، سلام مې ورته وکړ، ومې لیدل چې د پسه د غوښې قورمه، توده سپینه ډوډۍ، تازه میوه، دوه دانې کیلې او یوه منه یې مخې ته ایښودل شویدی او نه یې خوري. ترې ومې پوښتل: «تحقیق په خیر تېر شو؟ څه زحمت خو نه ؤ؟» په غوسه یې ماته وکتل او ویې ویل: «هو، تحقیق یې وکړ خو هیڅ په لاس ورنغلل، په خپلو پوښتنو کې محکوم وو، زه چې کوم جرم نلرم، کومه گناه مې نه ده کړې، څه غواړي، زمونږ د گوند یو مهم ملگری یې په بې رحمۍ سره وواژه، مونږ چې د هغه جنازه په پرتمینو مراسمو سره خاورو ته وسپارله او له حکومت نه مو د هغه قاتلین وغوښتل نو دا کوم جرم دی؟» ویې خندل او ویې ویل: «حیرانتیا ده چې ددې هیواد راتلونکې د څه ډول ارتجاع په لاس کې لویدلې ده؟» ما په جواب کې هیڅ ونه ویل، پوښتنه مې وکړه: «ډوډۍ

ولې نه نوش جان کوئ، که یخه شوې وي چې تو ده یې کړې؟» وویل: «نه، نه!
ورشئ قدیر ته وواياست چې په داسې حال کې چې د یو حزب لاربنود دې بېګناه
زندان ته اچولی دی، له مقرراتو سره سم د یو سیاسي بندي په شان ورسره چلن
وکړئ. دا خواړه د خوړلو دي چې زه یې وخورم؟»

ومې ویل: «په دلیل پوه نه شوم، ماته ووایئ که خواړه یخ شوي وي، کم وي،
چې زه یې چاره وکړم، دا کار زما دنده ده نه د داخله وزیر.» ویې ویل: «زه هېڅکله
داسې خواړه نشم خوړلی، نن ورځې په صحي بولتین یا روغتیایي پانه کې د ډاکټر
توصیه وګورئ چې هغه څه لیکلي دي، تاسو د هغې له مخې ولې عمل نه کوئ؟ زه
ناروغ یم، غوړي، سره کړې پیاز او مالګه نشم خوړلی.» ومې ویل: «تاسو په کور
کې څه ډول غذا خورئ؟» ویې ویل: «زه ځانګړی غذايي رژیم لرم، زه همیشه د
«چرګ یا زرک» غوښه پرته له غوړو خورم.» حیران شوم چې ددې بېچاره او
غریب هیواد د زحمت کشانو د ګوند مشر چې اکثر خلک یې د بخور و نمیر په ډول
ژوند تېروي، خو بوډا او عمر خوړلی مشر یې چرګان او زرکي خوري، له کوم مدرک
نه یې برابروي؟ تره کې خپلو خبرو ته ادامه ورکړه او ویې ویل: «زه د د. خ. ا.
ګوند رهبر یم، زما ملګري ما دوست ګڼي، زما له ناروغۍ نه خبر دي، کوم غذايي
رژیم چې زما معالج ډاکټر ټاکلی دی د هغې لګښت ګوند ورکوي، زه کومه
شخصي شتمني نلرم. زما ټول لګښت او مصرف ګوند ورکوي. زمونږ ګوند د پیسو
عایدات هم لري، حق العضویتونه، اعانې، مرستې، د کتابونو خرڅلاو، کوچنۍ
حرفوي او تجارتي فعالیتونه، دا ټول زمونږ د ګوند د پیسو عایدات دي. زما
د رملنه او غذايي رژیم له همدې مالي پانګې څخه برابرېږي. زه په قطعي ډول
غوړي غذا او سرو کړو پیازو له خوړو څخه پرهېز یم.» وپوهېدم چې له دې
غذايي اعتصاب څخه هدف څه دی، ورته ومې ویل: «د ډاکټر توصیه چې نن یې
ستا د روغتیا په پانه کې د غذايي سیستم په اړه څه لیکلي دي له سبا نه عملي
کېږي، د نن شپې خواړه د چارشنبې د ورځې د سهار په تابلو کې حواله شوېدي،
زمونږ کومه ګناه نه ده، او س ناوخته دی، کولای شئ ډوډۍ د شیدو له چای سره

وخورئ. » ما په کوټه کې وچې شيدې لرلې، يوه چاينکه د شيدو چای او توده ډوډۍ مې ورته راوغوښتله، په دې ترتيب د تره کی غذايي اعتصاب پای ته ورسېد، د ډوډۍ په خوړلو يې لاس پورې کړ. کارمل او جوزجانی هم راغلل او د شپې ډوډۍ يې وخوړه او استراحت يې وکړ.

## د ۱۳۵۷ د غوايي ۷مه د دولت پرضد د وسله وال پاڅون ورځ:

مخکې مې اشاره کړې وه چې زه درې مياشتې پخوا د جلب او احضار او د باقياتو د راټولولو او مقرراتو د ترتيبولو په موخه د يو هيئت په مشرۍ ټاکل شوی وم او د دواړو مقرراتو د مسودو کار بشپړ شوی ؤ، خو د هغې د بودجوي تکليف په اړه لازمه وه ترڅو د ماليې او سوداګرۍ د وزارتونو، د عظمی صدارت د محاسباتو د ديوان د رياست او د عدليې وزارت استازی په هغې غور وکړي او تصميم ونيسي. د پخوانی پلان سره سم د يادو شويو وزارتونو مرستيالانو ته بلنه ورکړل شوې وه چې د ثور په ۷مه د پنجشنبې په ورځ د کورنيو چارو په وزارت کې غونډه وکړي، د بودجوي تکاليفو او جوړښتونو، مسودو، اصولنامو او هغو مقرراتو باندې چې په بېلابېلو وختونو کې د کورنيو چارو د وزارت لخوا ترتيب شوې وې غور وکړي او په اړه يې تصميم ونيسي.

د پنجشنبې په ګهيځ راته په ټيلفون باندې د کورنيو چارو د وزارت لخوا وويل شول چې د مسودو په اړوند ټولې پاڼې له ځانه سره واخلم او د کورنيو چارو وزارت ته لاړ شم. د دندې د حساسيت له کبله يوه شيبه هم زه د کابل له نظارتخانې څخه بهر ته نه تلم. موضوع مې د امنيې قوماندان ته وويله، قوماندان هم يوه شيبه چوپ پاتې شو، وروسته يې راته وويل: « خير دی نن محمد ابراهيم د نظارتخانې آمر په خپل ځای توظيف کړه، تاسو له خپلو مسودو سره د کورنيو چارو وزارت ته لاړ شئ او د وزارت مقام ته يو وړانديز وليکئ چې عجالتاً د سياسي بنديانو د درملو، تازه ميوې او سګرټو د پېرودلو لپاره سل زره افغانۍ تخصيص ورکړي. ما د کورنيو چارو له وزير سره په ټيلفون خبرې کړې دي، تخصيص ورکوي. » پېشنهاد مې

ولیکه، د امنیې قوماندان لاسلیک کړ، او له ځانه سره مې واخیست. لومړی ځارن محمد ابراهیم مې په موقته توګه د کورنیو چارو له وزارت څخه زما تر راستنیدو پورې په خپل ځای په نظارتخانه کې مؤظف کړ، او په خپله سهار په ۸ بجو د کورنیو چارو وزارت ته لاړم. غوښتل مې چې لومړی د کورنیو چارو له وزیر څخه د تخصیص منظوري واخلم، وزیر په خپل دفتر کې شتون نه درلود. وویل شول نن په ارګ کې د کابینې فوق العاده غونډه ده. ګډ کمیسیون ته چې د کورنیو چارو مرستیال وزیر هم په کې ګډون درلود او د وزارت په کتابتون کې ناست وو ځنګ ته ورغلم او په کار مو شروع وکړه. زه د غونډې منشي وم، نور کمیسیونونه چې هغه هم د نورو وزارتونو د باصلاحیته استازو څخه وو، په بېلابېلو صالونونو کې په کار بوخت وو. په لس بجو د ورځې مو د سګرټ څکولو او پاکې هوا د تنفس کولو په مقصد تفریح وکړه. کله چې زه له کتابتون څخه ووتم، یو غیر عادي حالت حاکم ؤ. د لویو لارو او جادو پرمخ د ټانکونو غره هار، د هوایي درنو او سپکو وسلو ډزې او درزهار په وقفه یي ډول له لرې څخه اورېدل کېدل. د کورنیو چارو د وزارت پوځیان او افسران په غیر عادي حالت اخوا او دېخوا سره په خوځښت کې وو. له هرچا به مې چې تپوسل دقیق معلومات یې نه لرل. دوهم پور ته د عمومي قوماندانۍ دفتر ته ورغلم تر څو صحیح معلومات ترلاسه کړم. قوماندان هم له یو بل ډول حالت سره مخ ؤ. همدومره یې راته وویل، غونډه سمدستي پای ته ورسوئ، مېلمانه دې سمدستي خپلو اړوندو وزارتونو ته لاړ شي، ستا چې یونیفورم په تن دی په قرارګاه کې وسله ویشل کېږي، تاسو هم سلاح واخلئ او وظیفې ته چمتو اوسئ.

په فوري ډول قرارګاه ته لاړم، یو میل روسي کره بین یې له څلور پنځګونو کارتوسونو سره راکړ، له خپلې وسلې سره کتابتون ته ننوتم، د مسودو پاڼې مې راټولې کړې او د کتابونو په الماری کې مې خوندي کړې. مېلمنو ته مې وضعه په مجمل ډول لکه څرنګه چې عمومي قوماندان راته ویلې وه بیان کړه، هغوی هم سمدستي د کورنیو چارو له وزارت څخه ووتل، زه له خپلې وسلې سره دېخوا او هاخوا په خوځښت کې وم، حالت بالکل نامعلوم او غیر عادي ؤ.

## د اوضاع بدلون او په ښار کې دزې:

د وزارت په انګړ او دهلیزونو کې چې وګرځېدم، معلومه شوه چې اوضاع بالکل بل ډول او نامعلومه ده، هېڅوک نپوهېدل چې په ښار کې دا دزې ولې کېږي. ملکي مامورینو ته اجازه ورکړل شوې وه چې خپلو کورونو ته لاړ شي، خو لیدل مې چې زیاتره افسران هم چې ملکي لباس یې په تن ؤ له ملکي مامورینو سره له وزارت څخه ووتل. د کومو افسرانو چې پوځي یونیفورم په تن ؤ هغوی ته وسله ورکړل شوې وه، ما هم یو میل وسله اخیستې وه او یو میل شخصي تومانچه مې هم له ځانه سره لرله. تردې یوه شپه وړاندې د افغانستان راډیو د نور محمد چې په تره کی مشهور ؤ، ببرک چې په کارمل مشهور ؤ، دستګیر پنجشیري، عبدالحکیم مشهور په جوزجانی، حفیظ الله مشهور په امین د نیولو په اړه چې د اساسي قانون په خلاف یې د یو ګوند په حیث په لاریون او غونډه کې تبلیغات کړي وو خبر خپور کړی ؤ. داسې ویل کېدل چې د پوهنتون او پولی تخنیک محصلین د د. خ. ا. د ګوند د مشرانو د نیول کېدو او له دې امله چې په راډیو کې په سپکاوی سره یاد شویدی غواړي د دولت له اجازې پرته د مظاهرو لپاره لارو او سرکونو ته راووځي، دولت د هغوی د ویرولو لپاره ټانکونه او زغره وال ښار ته راایستلي دي ترڅو د مظاهرو مخه ونیسي. په انګړ کې مې جګړن (سمونیار) عبدالباقي ولید، ما ته یې وخندل او ویې ویل: کره بین ټوپک دې د څخه لپاره اخیستی دی؟ په جواب کې مې ورته وویل: ټولو افسرانو ته یې ورکړی دي، زه نپوهېږم چې څه وضعیت دی. هغه هم بشپړ معلومات نه لرل، ویې ویل فکر کوم هرڅه چې دي او له هرې خوا چې دي خو د دولت پرضد دي، ښه ده چې سلاح دې اخیستې ده، که اړینه شوه د دولت پرضد به یې وکاروې. ما او سمونیار عبدالباقي سره پېژندل، هغه هم د پرچم ډلې غړی ؤ، د ودانۍ څلورم پوړ ته وختم، هلته د مخابرې دستګاه او د مرکزي مخابرې مرکز ؤ. د مخابرې د آمر ډګروال محمد افضل نه مې پوښتنه وکړه، هغه هم دقیق معلومات نه لرل، هغه وویل د دفاع وزارت مخابره وایي د څلورمې زغره وال او پنځلسمې قوې وسایط د دفاع د وزیر په امر د څرخي پل لخوا د ښار په طرف راځي، خو څرګنده نه ده

چې د کوم هدف په خاطر ښار ته راځي. ډګروال محمد افضل زیاته کړه چې د پولیسو ثابت او ګرځنده شبکې هم په لویو سرکونو او څلور لارو کې د ټانکونو د حرکت او غره هارو راپورونه ورکوي خو په موخه یې نپوهېږي. تاسو ګورئ چې دولتي دستګاه څومره بې کفایته وه، په ښار کې په وقفه یې توګه درنې او سپکې ډزې اوریدل کېدې، عمومي قوماندانۍ د وزارت ساتونکي پوستې په سپکو وسلو سنبال کړي وې، د وزارت په انګړ کې د پولیسو یو افسر وسله په لاس وارخطا او بېړنۍ ښکارېده. له هر دروند ډز سره به یې رنګ الوت او لړزېده به، ورنه پوښتنه مې وکړه چې ولې پریشانه یې؟ وګوره په ښار کې څه ډول ډزې دي او څومره ټانکونه راوتلي دي، زما په لاس کې کره بېن ټوپک دی، د ټانک په مقابل کې کره کبین ټوپک څه کولای شي؟ دا ټانکونه دولتي دي، د دولت مخالفین ټانکونه او زغره وال نلري، ولې اندېښمن یې؟ هرڅومره تسلي مې چې ورکوله خو افسر حواس له لاسه ورکړي وو، نه ډاډه کېده، ډېر وارخطا او اندېښمن ؤ، د درنې وسلې د ډز له اورېدو سره به د بخوا او هاخوا ځغلېده. له لاسه مې ونیو، د وزارت د احاطې په جنوب لویدیزه څنډه کې یوه د لرګي غرفه وه چې پیره دار په کې ؤ، هلته کښېناستو، ورته مې وویل: اندېښنه مه کوه، که دا ټانکونه لکه څرنګه یې چې وویل دولت د مظاهره کوونکو د ویرولو لپاره په کار اچولي وي، نو مونږ ولې اندېښنه وکړو، او که دا وګڼو چې د مخالفینو لخوا د دولت پر ضد دي نو بیا به هم د دولت له لوړو چارواکو سره کار لري، زما او ستا په شان افسرانو سره کار نلري، هرڅه مې چې ورته وویل کومه ګټه یې ونه کړ. ومې ویل ښه به دا وي چې خپله دریشي په خپل دفتر کې له تنه اوباسې، خپله وسله بېرته قرارګاه ته وسپارې او کور ته لاړ شې. په دې کار کې یې هم ستونزه لرله، ځکه وسله ورپسې قید شوې وه. بیرته سپارل یې ناشوني وو، ددغه سړي له نوم یادولو څخه مې په دې کتاب کې ډډه وکړه ځکه د ثور د انقلاب له بریالیتوب وروسته مو چې په وزارت کې سره ولیدل، هلته یې هیله راته وکړه چې راز یې په خپل زړه کې پټ وساتم، دغه سړی اوس هم ژوندی دی او په کابل کې دی.

ډزې ورو ورو د ښار خواته رانږدې کیدلې. د ارګ په شاوخوا او پښتونستان

واټ کې ډزې ډېرې زیاتې وې. لږه شیبه نه وه تېره چې اته عرادې ټانکونه د وزارت له مخې سر ک نه د کارته پروان په لوري تېر شول خو ډزې یې نه کولې. هغه آوازه چې مخکې خپره شوې وه چې گنې دولتي ټانکونه له دفاع وزیر سره په ښار کې عملیات کوي، د کورنیو چارو د وزارت د مامورینو په اند حقیقت ته نږدې بریښېده خو داسې نه وه.

د کابینې فوق العاده غونډې، په ښار کې لرې او دانه وانه د درنو او سپکو وسلو ډزو، د کورنیو چارو د وزارت افسرانو ته د وسلو ویشلو ټول هک پک او حیران کړي وو. د دفاع او د کورنیو چارو د وزارتونو د مخابرو دستگاوو د قیقه وضع نه تثبیتوله او یا یې نه شوای تثبیتولای، د ماسپښین تر دوه بجو پورې د کورنیو چارو په وزارت کې حالت غیر عادي، مجهول او کړکیچن ؤ.

## د کورنیو چارو په وزارت د ټانکونو برید:

له څلورم منزل (آمریت مخابرې) څخه راکښته شوم، د کابل نظارتخانې ته مې ټیلفون وکړ. لومړی څارن محمد ابراهیم راته وویل: «په ټول ښار کې ډزې دي، په نظارتخانه او توقیف خانه کې اضافي امنیتي تدابیر ونیول شول. یو شمېر وسله وال افسران او سرتیري د نظارتخانې د بامونو په سر او شاوخوا ته ځای پرځای او مورچې یې ونیولې، د بندیانو وضع په عادي حالت کې ده.» ما ورته وویل چې «زما تر درستنېدو پورې بشپړ مسئولیت لرې، زه په داخله وزارت کې ایسار شوی یم، عمومي قوماندان هېچا ته اجازه نه ورکوي چې له وزارت نه ووځي، دلته هم د اضافي امنیتي تدابیرو د نیولو موضوع ده، مونږ ته وسله راکړل شوې ده، خو زه هڅه کوم چې د لومړی فرصت په لاس ته راتگ سره ځان در ورسوم، خپلې دندې ته متوجه اوسه.» دوهم منزل ته لاړم چې که د کورنیو چارو وزیر خپل دفتر ته راغلی وي، چې د تخصیص په وړاندیز ورنه احکام واخلم، وزیر نه ؤ راغلی. دوه ځنځیر لرونکې ټانکونه، یوه عراده مخابره لرونکی جیپ او یو عراده بیردم د وزارت انگړ ته راداخل شول، او د وزارت د اصلي ودانۍ شاوخوا ته ودرېدل او د ودانۍ څلورم

منزل يې تر اور لاندې راووست. و داني ولړزېده، د څلور منزل ښېښې ماتې شوې، مامورين او كاركوونكي وارخطا شول او يوه خوا او بله خوا يې منډې وهلې. چا په تشناب، چا په دهليزونو او چا د لومړي او دوهم منزل په زينو كې د ګوليو د لګېدو د خطر له ډاره ځانونه پټول. زه هم د لومړي او دوهم منزل ترمنځ په دوه لاري كې ولاړ وم. له جيپ نه د يوې دنګې ونې خاوند جګتورن كلاشينكوف په لاس راكښته شو او له لوډسپيكر څخه دا غږ وشو چې ويل يې: «د كورنيو چارو د وزارت درنو افسرانو، ورو ضابطانو، مامورينو او كاركوونكو! انقلاب دی انقلاب، دفاع وزارت، راډيو تلويزيون او ټولې وزارتخانې د انقلابي ځواک په لاس كې دي، څوک چې مقاومت ونه كړي مونږ ورسره كار نلرو، خپلې وسلې پر ځمكه كېږدئ او د وزارت په انګړ كې راټول شئ، بېځايه او بې ګټې مقاومت مه كوئ كه نه نو وبه وژل شئ، په چټكۍ سره د راټولېدو ځای ته راحاضر شئ.»

ما چې دا غږ واورېد، په ذهني توګه د دې غږ مخالف نه وم، فكر مې وكړ چې رېښتيا هم په يوه كره بين ټوپک او شلو دانو مرميو سره د ټانک په وړاندې مقاومت كول بې ځايه او حماقت دی. له زينو راكښته شوم، نورو خلكو چې په دې زينو كې له ما سره يو ځای وو راته وويل چې «په دې ډزو كې چېر ته ځې په ګولۍ به ولګېږې؟» ورته ومې ويل: «د راټولېدو ځای ته ورځم، تاسو هم په ما پسې راځئ.» ما د وسلې خوله د تسليمېدو په توګه كښته نيولې وه، په آخرنۍ زينه كې وسله په ځمكه وغورځوله او دواړه لاسونه مې پورته ونيول، د غونډېدو ځای ته ورغلم. يو افسر راغږ كړ چې كورتۍ او خولۍ دې په ځمكه وغورځوه. كله مې چې كورتۍ وايستله په څنګ كې مې تومانچه ښكاره شوه، هغه مې هم په ځمكه وغورځوله او د غونډېدو ځای ته لاړم او په ځمكه كښېناستم. ورو ورو يو، يو تن په پورته نيول شويو لاسونو سره د غونډېدو ځای ته راتلل او په څنګ كې مې كښېناستل. يو تن وړوكی ضابط ته چې په څنګ كې مې ولاړ ؤ وويل: «ما خپل قوماندان ته بوځه كار ورسره لرم.» راته ويې ويل: «څه كار ورسره لرې، صبر وكړه، څو دقيقې وروسته تاسو ټول رخصتوي.» ورته مې وويل: «زه اجازه او رخصت نه غواړم، كار ورسره

لرم.» وړوکی ضابط د خپل قوماندان څنګ ته ورغی، څه یې ورته وویل، ما ته یې اشاره وکړه، خواته ورغلم ترڅو ځان وروپېژنم او د انقلاب د کلمې په اړه چې په لوړ غږ مې اورېدلې وه ځان خبر کړم.

## له انقلابي ځواک سره یوځای کېدل:

د پوستې قوماندان جګتورن محمد رفیق ته ورغلم، نوموړی د زرهدار پنځلسم نمبر ځواک د افسرانو له جملې څخه ؤ. سلام مې ورته وکړ او تپوس مې ترې وکړ: «ستاسو د انقلاب په غږ دې ولیدل چې ما وسله په ځمکه کېښوده او د راتولېدو محل ته راغلم، پوهېدلی شم که مهرباني وکړئ او ووایئ چې انقلاب د کوم ګوند لخوا او کومې پوځي قطعې له طرفه په لاره اچول شوی دی؟» ویې ویل: «انقلاب د د. خ. ا. ګوند په مشرۍ د څلورمې قوې او د زرهدار پنځلسم ځواک د ګوندي ملګرو لخوا په لاره اچول شوی دی.» ومې ویل: «چې داسې ده نو زه هم د پولیسو په برخه کې د ګوند د مخفي غړو له جملې څخه یم، نو زه څه ډول همکاري وکړم؟» جګتورن د خپل یادښت په کتابچه نظر وځغلاوه، ما چې خپل بشپړ شهرت، نوم او وظیفه مې مخکې لا ورته ښودلې وه، راته ویې ویل چې: «ستا نوم زما په لست کې نشته.» ورته ومې ویل چې: «باید موجود نه وي ځکه د حزب د جوړېدو له لومړي سر څخه د اردو او پولیسو حوزې او سازمانونه سره بېل وو.» وویل: «سمه ده منم یې چې ته هم زموږ حزبي ملګری یې، ووایه چې د کورنیو چارو وزیر قدیر په کوم منزل او کومه کوټه دی؟» ورته ومې ویل: «که د کورنیو چارو د وزیر د نیولو لټون کوئ نو ډاډه اوسئ چې هغه په وزارت کې بیخي شته نه، هغه د سهار له ۸ بجو راپدېخوا په وزارت کې شتون نه درلود، وایي چې ارګ ته تللی، نن په ارګ کې د کابینې کومه خاصه غونډه ده، وزیر هم په غونډه کې ګډون کړی دی.» موسکی شو او ویې ویل: «ارګ زموږ په محاصره کې دی، حتمي نیول کېږي.»

جګتورن د خپل ځان لپاره د زیاتو معلوماتو په موخه زما څخه پوښتنې وکړې ویې ویل: «په وزارت کې شخصاً له وزیر سره څو تنه تړاو لري او کوم کوم دي؟»

ورته مې وویل: «له وزیر سره تړلی کسان لکه وروړ، وراره، کاکا، د کاکا زوی ماما، د ماما زوی، خسر، اوښې که دې دا کسان مقصد وي خو یو هم نشته.» ویې ویل: «په دې وزارت کې څو تنه افسران او امنیتي ځواکونه او په څومره شمېر کې دي؟» ورته مې وویل: «د موجوده افسرانو په شمېر نه پوهېږم، خو یو ستر وزارت دی، ښایي له ۳ څخه تر ٤ سوو پورې افسران ولري، د قرارګاه یو تولی لري او د خدماتو د افرادو یو تولی چې په دغو شعبو باندې آمریت لري.» ویې ویل: «معین او د ژاندارم او پولیس عمومي قوماندان په کوم منزل کې دي؟» ومې ویل: «عمومي قوماندان برید جنرال محمد طاهر او د کورنیو چارو د وزارت معین ښاغلی «دشتی» همدا اوس یو ځای ناست دي او اشاره مې دوهم منزل د عمومي قوماندان دفتر ته وکړه، د هغه د کار په کوټه کې ایرکنډیشن نصب دی، په همدې کوټه کې عمومي قوماندان او د وزارت معین ناست دي.» جګتورن راته وویل چې: «د درې یا څلور سوو افسرانو څخه وینې چې ډېر لږ یې د راغونډېدو ځای ته راغلي دي، نور ولې نه حاضرېږي؟ د مقاومت فکر به لري، سنګر به یې نیولی وي؟» ومې ویل: «نه، هېڅکله به مقاومت ونکړي، خو کېدای شي ویروونکی ډزې د هغوی د راوتلو مخنیوی کوي.» ویې ویل: «راشه او زما له خوا هغوی ته ووایه چې د راغونډېدو ځای ته راشي او خپلې وسلې په ځمکه کېږدي، که تر ۱۵ دقیقو پورې خپلې وسلې ونه سپاري او د راجمع کېدو ځای ته حاضر نشي، مسئولیت به یې په خپله غاړه وي.» زه په شعبو وګرځېدم او د قوماندان امر مې ور ورساوه، او د خپلو ستر ګو حال مې هم ورته ووایه. د بېژند، پاسپورت، تخنیک، لوژستیک او محبوسینو د ادارو افسران یو په بل پسې د راجمع کېدو ځای ته راوخوځېدل.

کله چې د یو منزله ودانۍ دهلیز ته چې د اصلي ودانۍ په شمالي برخه کې دي ورسېدم، ومې لیدل چې د وزارت د ملکي چارو یو لوړ رتبه مامور وارخطا د پخوا او هاغه خوا ته منډې وهي، کله تشناب ته ننوځي، کله یوې کوټې ته او کله بلې کوټې ته. غږ مې ورباندې وکړ: «ولې لالهنده او وارخطا یې، ته خو بې وسلې او ملکي مامور یې ولې ډارېږې؟» ویل یې: «زه پخوا د پارلمان غړی وم او اوس په وزارت کې

یو لوړ رتبه مامور یم، که ما ووینې صرفه راباندې نه کوي. » هرڅه چې مې ورته وویل فایده یې ونکړه، بالکل یې ځان له لاسه ورکړی ؤ. ویل یې: «اورې څومره پرله پسې او وژونکې ډزې دي؟ » ورته مې وویل: «خیر دی، دا هوایي ډزې دي، تا سره یې هېڅ کار نشته. » نه یې منله، غږ یې رپېده، ددې ودانۍ په دهلیزونو کې د لرګي ډېر په زړه پورې بیلرونه وو چې د باطله دانۍ کار ورڅخه اخیستل کېده، په ټوکه مې ورته وویل: «په تشناب او کوټه کې څوک نشي پټېدلی، ځکه ۱۵ دقیقې وروسته تالاشي پیل کېږي، ښه به دا وي چې په یوه بیلر کې پټ شې. » چې کله یې سترګې په بیلر ولګېدې سمدستي یې ورمنډه کړه او بیلر ته ورکښته شو، د بیلر خوله لږه تنګه غوندې وه، هرڅو یې چې کوشش وکړ، په بشپړ ډول نشو ورننوتلی، سر او اوږې یې بهر پاتې شوې وې. یوه عجیبه منظره یې جوړه کړې وه. د شورا وکیل صیب مې په خپل حال پرېښود او زه لاړم چې د نورو ادارو افسران د راجمع کېدو ځای ته وروبلم. د مصلحت له مخې مې د نوموړي شخص له نوم ښودلو څخه ډډه کړې ده، خو وروسته به مې چې کله بیا لیدلو نو په معنی لرونکې موسکا او خندا سره به مې هغه د لرګي د بیلر خاطره وریادوله.

## د راغونډېدو ځای او د افسرانو تسلیمېدل:

د څلور پوړیزې ودانۍ په جنوبي برخه کې د جنايي ریاست ودانۍ او په لویدیزه برخه کې یې یوه ودانۍ چې په کې د پاسپورت، لوژستیک، تخنیک او د بندیانو ریاستونه وو ورغلم، ټول افسران په خپلو دفترونو کې سره راټول شویدی، ناست دی او د خپل نامعلوم سرنوشت په اړه انتظار کوي، ټولو ته مې د قوماندان وینا ابلاغ کړه او ما چې څه کړي وو هغه مې ورته بیا کړل. هغوی پوښتنه کوله چې: «تراوسه یې څو تنه نیولي او وژلي دي؟ » ومې ویل: «هېڅوک نه نیول شوي او نه وژل شوي دي، زه لومړنی شخص وم چې خپله وسله مې ورته په ځمکه کېښوده او د راجمع کېدو ځای ته ورغلم، ما ته یې هېڅ ونه ویل. دا کومې ډزې چې اورېدل کېږي دا ټولې د وېرولو او هوایي ډزې دي، هغوی په تکرار سره ابلاغیه خپروي چې مونږ

هېڅ‌چا ته څه نه وایو، په دې شرط چې خپله وسله تسلیم کړي، د کورنیو چارو د وزیر، د وزارت د معین او د عمومي قوماندان د نیولو په هڅه کې دي، زه چې د کورنیو چارو د وزارت له افسرانو څخه یم، دنده یې راکړې ده چې یو ځل بیا د هغوی ابلاغیه په خپله ژبه تاسو ته ورسوم، که غواړئ چې ژوندي او سلامت پاتې شئ، خپلې وسلې په یوځای کې سلاکوټ کړئ، ور ویې سپارئ او د غونډېدو ځای ته له ما سره یوځای لاړ شئ.» د لوژستیک رئیس برید جنرال محمداجان، ډگروال محمد موسی نعیمي، ډگروال غلام حیدر «مشاهد» وملنه، ټولو افسرانو او کارکوونکو خپلې وسلې په یوه کوټه کې په ځمکه کېښودې، او په یوه منظمه لیکه کې په داسې حال کې چې دواړه لاسونه یې پورته نیولي وو د راغونډېدو د میدان په لوري وخوځېدل. په لاره لیدل کېدل چې د مرکزي جنايي رئیس غلام فاروق یعقوبي هم له خپلو همکارانو سره د غونډېدو ځای ته روان دي. افسران د غونډېدو په ځای کې په ځمکه کښېناستل. په دې وخت کې ډگروال پاچا «سرباز» چې د عمومي قوماندانۍ نوکریوال آمر ؤ میدان ته راغی. پاچا سرباز د هوايي ځواک د هغو افسرانو له جملې څخه ؤ چې د داودخان په کودتا کې یې هم ونډه درلوده. د داؤدخان د رژیم په لومړی سر کې یې د کابل ولایت د امنیې د قوماندان په توگه دنده ترسره کوله، توفیق احمد ورنه وپوښتل چې «تاسو ولې تر نورو ناوخته او په انفرادي ډول د راجمع کېدو ځای ته حاضر شوئ؟» سرباز په بې پروايۍ سره وویل: «زه د وزارت نوکریوال آمر یم، په ټیلفونونو کې مصروف وم.» د دې خبرې په ویلو سره چې په ټیلفونونو کې مصروف وم ترشک لاندې راغی او د هغه په وهلو ټکولو پیل وشو. نوموړی یې څو سوکونه او څپېړې وواهه او په ځمکه یې کښېناوه. وروسته بیا سمونیار سعید اتمر د مخابرې له ډگروال محمد افضل سره له څلورم منزل څخه د راجمع کېدو ځای ته حاضر شول. د غه مهال توفیق احمد د پاچا سرباز په وهلو او لغتولو بوخت ؤ. محمد افضل خان په ډېر مهارت سره د غونډېدو ځای ته ننووت او څوک ورته متوجه نشول او سعید اتمر چې لږه ونگه ونه درلوده تر پوښتنو لاندې راغی. اتمر د دې پرځای چې کومه پلمه یې کړې وي له وارخطايۍ نه یې وویل:

«۹ مخابرې په دستگاه کې وم. » د ناوخته راتگ او په دستگاه کې وم په خبره هغه هم تر شک لاندې راغی او د پاچا سرباز له سرنوشت سره مخامخ شو. له ډېرو وهلو او ټکولو او سبکاوی نه وروسته په ځمکه کښېناست، شونډې یې وینې شوی وې. د غونډېدو په محل کې یو بل تن افسر محمد گل «اندړ» چې پښه یې ټپي وه هم تر ستر گو کېده. داسې ښکارېده چې د وېروونکو او هوایي ډزو په مهال د دیوال او یا ښیښې کومه ټوټه د هغه په پنډۍ لگېدلې او زخمي شوی ؤ.

د قرارگاه د ټولې وسله وال سرتیری هم تسلیم شوی وو، چې په دې ترتیب د کورنیو چارو د وزارت ټول افسران پرته له کوم مقاومت او تلفاتو څخه بې وسلې او تسلیم شول او د غونډېدو په ځای کې سره ناست وو.

جگتورن توفیق احمد چې زه د راجمع کېدو په ځای کې ولیدم اشاره یې وکړه او ماته یې وویل: «اوس تاسو له دوه تنو افسرانو او دوه تنو سرتېرو سره لاړ شئ عمومي قوماندان او د کورنیو چارو د وزارت معین د تجمع ځای ته راحاضر کړئ. » ما له څلورو تنو وسله والو سره د ودانۍ له منځنۍ زینو څخه د دوهم منزل په طرف حرکت وکړ. ما له زینو څخه د عمومي قوماندان دفتر هغوی ته د هدف په توگه ور وپېژاند. هغوی دروازه تر اور لاندې ونیوله، په یوه منډه یې ځان د قوماندان دفتر ته وروړساوه. مونږ دفتر ته ور داخل شوو. قوماندان په داسې حال کې چې تومانچه او یو میل کلاشینکوف یې پر مېز پروت ؤ او سگرټ یې په اختیار کې ؤ بې وسلې شو او پرته له کوم مقاومت څخه ونیول شو. ښاغلی دشتی، د وزیر سکرتر خالد، د استخباراتو مدیر محمد عیسی ټول ونیول شول او د عمومي قوماندان ټول سرتیری او ساتونکي بې وسلې شول. دواړه لاسونه یې پورته او د راغونډېدو ځای ته بوتلل شول. عمومي قوماندان لومړی په همدې میدان کې زنگون کېږد شو او بیا په یوه چوکۍ کښېنول شو. نپوهېږم چې په څه علت ؤ د وزارت معین یې تر وهلو لاندې ونیو او څوسوکونه او څپېړې یې وواهه.

په دې سره د کورنیو چارو د وزارت د افسرانو تسلیمېدل او بې وسلې کېدل بشپړ شول او د راغونډېدو په ځای کې د دوه تنو وسله والو سرتېرو ترڅارنې لاندې راوستل شول.

## له برید جنرال محمد طاهر سره د توفیق احمد خبرې او بحث:

زه چې څو دقیقې مخکې د کورنیو چارو د وزارت د افسر په توګه وسله وال شوی وم، او اوس د انقلابي افسرانو سره یوځای مې د عمومي قوماندان د نیولو لپاره د هغه په دفتر برید وکړ، تر سترګو لاندې یې راته کتل او هېڅ یې نه ویل. شکمن ؤ چې آیا زه هم نیول شوی یم او که د انقلابیانو سره به یم. کله چې د راغونډېدو ځای ته لېږدول کېده، زما له څنګه تېرېده راته یې وویل: «تاسو هم له دوی سره (هدف یې انقلابي افسران وو) یئ؟» ومې ویل: «هو.» د راغونډېدو ځای ته چې راغلو، عمومي قوماندان ته په داسې حال کې چې کم کم باران ورېده، زنګون کېږد و ویل شو. جګتورن عمومي قوماندان ته وویل: «د ګوند مشران په کوم ځای کې بندیان دي؟» ویې ویل: «په وزارت کې نشته، ما ته هېڅ معلومات نشته.»

جګتورن وربانډې درې هوایي ډزې وکړې، ویې ویل: «ستا وژل راته د یوې چنچنې دومره ارزښت نلري، ووایه چې د حزب مشران چېرته دي؟»

عمومي قوماندان زما لوري ته اشاره وکړه او ورته ویې ویل: «هغوی په کابل ولایت کې له هغه سره دي.» د هغه مطلب د هغوی نه د کابل د امنیه قوماندانی او زما څخه ؤ.

جګتورن له ما وپوښتل چې: «ریښتیا مشران د کابل په ولایت کې بندیان دي؟»

ومې ویل: «هو، هغوی د کابل ولایت په نظارتخانه کې بندیان دي.»

ویې ویل: «چټکي وکړئ چې یو موټر ونیسو او د هغوی د خلاصون لپاره کار وکړو چې ورته ضرر او تاوان ونه رسېږي.» ما چې د موټر په تم ځای کې مې جیپ موټر درولی ؤ، هرڅومره چې مې وکوت ومې نه لید، فکر مې وکړ ښایي ډریور د ډزو د خطر له امله په کوم ګوښه ځای ته بیولی وي. په دې ځای کې د عمومي قوماندان تیوټا موټر ولاړ و، کونجي یې په سویچبورډ کې وه او ډریور یې تښتېدلی ؤ. موټر ته د یوسف او سید رحیم په نوم له دوه افسرانو چې لومړی بریدمنان وو او له

دوه تنو سرتیرو سره ورپورته شوو، او د قوای مرکز د روغتون د څلور لاری په طرف مو حرکت وکړ. مونږ پوښتنه وکړه چې چېرته ځو، وویل لومړی د قوای مرکز د روغتون د څلور لارې په طرف ځو، دوه عرادې ټانکونه له ځانه سره اخلو او بیا د کابل په ولایت حمله کوو. زه به دې فکر کې وم چې که هغوی یې ددې لږ وخت په اوږدو کې بل ځای ته لیږدولی وي، یا یې وژلی وي نو پایله به یې څه وي، په داسې حال کې چې زه د هغوی د ساتنې مسئول وم، خو نن په تصادفي ډول له نظار تخانې څخه بهر پاتې شوی وم. په هرصورت څلور لارې ته ورسېدو چې د ټانکونو یو اوږد کتار د انصاري تر څلور لارې پورې رسېدلی ؤ. جګتورن له موټر نه کښته شو، ما چې کورتۍ او خولۍ نه درلودله، کمیس مې باران لوند کړی ؤ، د پسرلي باد لګېده یخني مې شوی وه. توفیق احمد راته د راتګ په مهال یو ښه پوځي بالاپوښ راکړی ؤ هغه مې د پولیسي پطلون له پاسه اغوستی ؤ. پیسې او سګرټ مې د کورتۍ په جیب کې پاتې شوی وو، دلته مې د جادې د ترافیک یو پولیس ولید چې سګرټ یې په لاس کې ؤ، اشاره مې ورته وکړه، زما خواته یې راوځغستل، له دې امله چې زه یې پېژندم او د عمومي قوماندان په موټر کې ناست وم یوه اندېښنه ورته پیدا شوی وه. د خپلو سګرټو ډبې او اور لګیت یې ماته راکړل او د انقلاب په بریالیتوب یې په موټر کې ناستو کسانو ته مبارکي وویله. جګتورن دوه عرادو ټانکونو ته د کابل ولایت په لوري د حرکت امر وکړ او له اړوند قوماندان څخه یې اجازه اخیستی وه چې زمونږ تر قوماندې لاندې د کابل ولایت ته لاړ شي.

کله چې د کورنیو چارو د وزارت د ودانۍ دروازې ته ورسېدو، موټر او ټانکونه ودرېدل. جګتورن توفیق احمد له موټر نه کښته شو، مونږ ته یې ویل، «زه د وزارت په قرارګاه کې پاتې کېږم او تاسو له ټانکونو سره د کابل ولایت ته ورشئ، د حزب مشران په همدې وسایطو کې د افغانستان راډیو ته ورسوئ. د راډیو ستېشن د ملګرو په لاس کې دي ترڅو مشران د انقلاب خبر د افغانستان د ټولو خلکو غوږونو ته ورسوي.» ما جګتورن ته وویل چې «د کابل د امنیې قوماندان د داود د رژیم له سخت سرو پلویانو څخه دي، کیدای شي ددې وخت د تېرېدو په ترڅ

دوهم څپرکی:

# د کابل په ولایت باندې برید او د نظارتخانې اشغالول

## د بندي مشرانو په لټه کې:

جګتورن توفیق احمد په دې فکر چې ګنې د ګوند مشران به د کورنیو چارو په وزارت کې وي، له همدې امله یې عمومي قوماندان برید جنرال محمد طاهر تر فشار لاندې راوستی ؤ ترڅو اړ شو چې زه یې ورته په ګوته کړم او په موقتي توګه یې ځان له وهلو ټکولو او فشار څخه خلاص کړ او له بلې بلوه، که وګنم چې هغوی د کابل د امنیې قوماندان میرګل لخوا وژل شوي وي او یا یې بل کوم ځای ته انتقال کړي وي، نو زه به له انقلابیانو سره په جنجال کې لویدلی وم، او ریښتیا چې همداسې کېدل هم.

زه هم په زړه کې ډېر اندېښمن وم ځکه له ګهیځ نه تر ماز دیګره ډېر وخت تېر شوی ؤ، په داسې بحراني، جنګي او کړکیچنه اوضاع کې طبیعي ده چې حالات ډېر ژر تغییر کوي. فکر مې کاوه چې د کابل د امنیې قوماندان میرګل د رژیم له سرسختو پلویانو او د کورنیو چارو د وزیر قدیر همصنفی او د عام تام اختیاراتو خاوند ؤ، که دولت ته معلومه شوي وي چې د دولت په خلاف وسله وال پاڅون د د. خ. ا. ګوند لخوا په لاره اچول شوی نو په اولین فرصت کې به یې اسیر رهبران یو خواته کړي وي او ځان به یې د هغوی له شره خلاص کړی وي، خو د دې په عکس دولتي دستګاه دومره ورسته او بې کفایته شوې وه چې هېڅوک دې مهم او ژوندني کار ته متوجه شوی نه وو او د پاڅون اصلي عاملین یې روغ رمټ په خپل کور کې

کې يې مشران کوم بل ځای ته لیږدولی وي او يا له مونږ سره د قرارگاه په دروازه کې چې نظارتخانې ته مخامخ ده مقاومت وکړي، که د مقاومت د ماتولو په موخه مونږ د درنې وسلې ډز کوو نو نبغ په نبغه د نظارتخانې په دیوال لگېږي، خو په هرصورت زمونږ د گروپ مسئول قوماندان وتاکه، ترڅو د هغه په لارښودنه او قومانده باندې عملیات وکړو. » جگتورن په موټر کې ناستو افسرانو ته مخ راواړاوه او ويې ويل: « ملگرو! څرنگه چې جگړن د کابل ولایت د برحاله افسرانو له جملې څخه دي او له ځای سره آشنایي لري او هم له پوځي نظره يې رتبه له تاسو نه لوړه ده، ځکه نو تاسو د هغه په قومانده او مشوره حرکت وکړئ. » دا يې وويل او وزارت ته ننوت او مونږ د کابل د ولایت په لوري حرکت وکړ.

ساتلی وو. دا چې د عملیاتو مسئولیت یې زما په غاړه اچولی ؤ د کابل ولایت په لور د خوځېدو په مهال مې له ځانه سره د عملیاتو پلان جوړ کړ، که د جنوبي دروازې لخوا ترسره شي د قرارګاه ټولی به مقاومت وکړي چې زمونږ د ټانکونو د اور له امله د نظارتخانې دیوالونه په مستقیم ډول نړېږي، او که د لویدیز دروازې لخوا داخلېږو نو د غټو غټو ونو موجودیت زمونږ د وسایطو د پرمختللو مخه نیسي، نو هوډ مې وکړ چې د سالنګ واټ له لارې د نظارتخانې ترڅنګ دیوال باید د ټانک په واسطه وران کړو، ځکه د دیوال شاته له هستوګنې خالي یو لوی میدان شتون درلود چې د لوژستیک آمریت هلته د ډېرو سکاره زیرمه کول او کولای مو شول چې په آسانۍ سره د نظارتخانې دروازې ته پرته له تلفاتو ورسېږو. همدا پلان مې په چټکۍ سره له ځان سره مطرح کړ او نبغ په نبغه د سالنګ واټ ته داخل شوو. یوځي همکاران مې حیران شوي وو، ویې پوښتل: «د کابل ولایت له دواړو دروازو څخه لرې لاړو، بلکه کومه لاره هم شته، چې ولایت ته پرې ورننوځو؟» ورته مې وویل: «هو، ډېره ښه لاره شته.» لږه شېبه وروسته هغه ځای ته چې غوښتل مې ورسېدو، ټانکونه مې ودرول، ټانکستانو ته مې د هدف په اړه توضیحات ورکړل او امر مې ورته وکړ چې په غبر ګ او جوړه ډول سره په یوځل دیوال ړنګ کړي او خپل ټانکونه د روانې ویالی تر غاړې پورې چې د نظارتخانې دروازې له مخې تېرېدله ورسوي. په دې ترتیب سره پرته له تلفاتو او مقاومت څخه د نظارتخانې د دروازې مخې ته ورسېدو. زما سره ملګرو او یوځای افسرانو د دې کار د ترسره کولو حتی فکر هم نشو کولای.

## د کابل د امنیه قوماندانۍ اضافي تدابیر:

د کابل د امنیې قوماندان د جنوبي خوا دروازه ښه مضبوطه کړې وه، او د توقیف خانې، نظارتخانې، د ښځو توقیف خانه او د آمریت تخنیک د ورکشاپونو د بامونو له پاسه یې اضافي پوستې جوړې کړې وې او یو شمېر سرتیري او افسران یې هلته ځای پرځای کړي وو، خو دغو اضافي امنیتي تدابیرو له رامنځ ته شوي حالت سره انډول نه درلود. د امنیې قوماندان په دې نه ؤ توانېدلی چې د مدافعې

ټینګ تدابیر ونیسي، د کورنیو چارو بې مغزو وزیر چې د ارګ په فوق العاده غونډه کې کلابند پاتې شوی ؤ، په غالب ګومان چې دغه فوق العاده او بیړنۍ غونډه هم د همدغه بندیانو د سرنوشت ټاکلو په موخه جوړه شوې وه، کوم وخت چې د سیاسي بندیانو پلویانو په وسله وال پاڅون لاس پورې کړ، نو د پاڅون په لومړیو کې، ان چې تر مابنامه پورې د ښار ټیلفونونه فعال وو. د کورنیو چارو وزیر باید د مشرانو د له منځه وړلو لپاره امر ورکړی وای ترڅو د پاڅون هغه اصلي جرړه یې غوڅه کړې وای، خو د قدیر په سر کې چې فقط د وخت د واکمن د نیک نظر له کبله د کورنیو چارو د وزارت مقام ته رسېدلی ؤ داسې کوم فکر او تجویز نه ؤ ګرځېدلی، که نه نو د غوایي کودتا نه کامیابېدله. حکومتي دستګاه ورسته او بې کفایته وه، ځکه نو په رڼا ورځ یې د حکومت په خلاف د همدوی د لاس لاندې اوامر لاندې قطعاتو څخه د ګوتو په شمېر ګروپونو په واسطه پاڅون وشو، د کورنیو چارو وزیر، د ژاندارم او پولیس عمومي قوماندان جنرال محمد طاهر او د کابل د امنیې قوماندان له سهار نه تر مازدیګره پورې د کودتا د رهبرۍ مرکزي هسته ونه توانېدل چې له منځه یې یوسي.

د سیاسي بندیانو د لومړي او دوهم وخت ساتونکو افسرانو چې شمېر یې اتلس (۱۸) تنو ته رسېده د تشنابونو له روشندانونو او کړکیو څخه زه لیدلی وم چې له ټانکونو سره د کابل ولایت ته راننوتي وم، دوی په شک او حیرانتیا کې وو چې ګهیځ مې د نظارتخانې د یوه مسئول افسر په توګه دنده ترسره کوله او د همغې ورځې په مازدیګر له پاڅون کوونکو سره یوځای د دولت پر ضد عملیات ترسره کوم. په هرحال، د اردو له پوځیانو سره زما موجودیت د هغوی لپاره امید بخښونکی ؤ.

زه له موټر نه راکښته شوم، په هغو افسرانو چې د امنیتي اضافي تدابیرو په لړ کې یې د بامونو په سرونو سنګر نیولی ؤ، غږ مې وکړ ترڅو پر ته له مقاومت نه راکښته شي او خپله وسله پر ځمکه کېږدي. د کورنیو چارو د وزارت د نیولو او د عمومي قوماندان تسلیمېدل مې ورته ابلاغ کړل. افسرانو زما په خبره باور وکړ، ځکه چې زه هم د برحال افسرانو او د کابل د امنیه قوماندانۍ د آمریتونو له جملې

شخه د یوه آمریت مسئول وم، ټول له خپلو مواضعو شخه راکښته شول. یو تن د عبدالحنان کتهوازی په نوم چې د چنداول د سمت د ماموریت مرستیال چې یو ځوان پښتون ؤ او د سنگر پرېښودل یې شرم گڼل لاهم د بام په سر په خپله مورچه کې پاتې ؤ خو ډزې یې نه کولې. سید رحیم غوښتل چې د کلاشینکوف د مرمۍ هدف یې وگرځوي، ما مخنیوي وکړ او ومې ویل زغم وکړئ راکښته به شي. هرڅو مې چې غږ ونه ورته کول خو هغه په خپله موضع کې ناست ؤ. د هغه د خولۍ څنډه مونږ ته ښکارېده. سید رحیم خپل کلاشینکوف د موټر د بانټ له پاسه کېښوده او د هغه خولۍ ته یې په نښه کړه او ډز یې ورباندې وکړ. خولۍ یې والوته خو مرمۍ په هغه ونه لگېده. د امنیه قومندانۍ په دفتر مو د هشکې څو ډزې وکړې، د ولایت ودانۍ مو څو کرته تر اور لاندې ونیوله، خو له مقابل لوري هېڅ کوم ډز ونه شو. په دې وخت کې مې یو تن سلطان محمد سرتیری چې زما د دفتر امربر ؤ ولیدل چې کله کله زما خواته گوري، سلطان محمد زما خواته راوغوښتل، سلامي یې ووهله، دنده مې ورکړه چې په مارش مارش لاړ شي او د والی، د امنیې د قوماندان او د کابل د امنیت د آمر د دریځ او موجوده حالت په اړه راپور ماته راوړي. څو شیبې وروسته سلطان محمد بیا راحاضر شو او په خپله هراتۍ لهجه یې وویل: «صیبه! والی د جنابي آمریت د والگا موټر نه په استفادې سره تښتېدلی دی، د امنیې قوماندان خپله چپن او پتکی په سر کړی او د لوژستیک د پخلنځی له لارې تښتېدلی او د امنیت آمر هم نشته.»

ددې باوري خبر په اورېدو سره مونږ ټول له موټر نه راکښته شوو او پرته له کومې اندېښنې او تشویش شخه د نظارتخانې د دروازې په طرف وخوځېدو. زمونږ وسایط چالان او د حرکت لپاره چمتو ولاړ وو.

## د کابل ولایت په نظارتخانه کې:

### د مشرانو خوشي کېدل:

کله چې د امنیه قومندانۍ اضافي امنیتي تدابیر پرته له کوم مقاومت نه مات

شول، د مقاومت لیکه ماته شوې وه. والي، د امنیې قوماندان او د امنیت آمر له خپلې قرارگاه څخه تېښتـه کړې وه. مونږ په ډاډه زړه د نظارتخانې دروازې ته ورغلو، د پخوا په شان د دروازې په خارجي برخه کې یو نظام قراول له یوه افسر سره دنده ترسره کوله، خو په دغه مهال حاضر نه وو. د نظارتخانې یوه دروازه لکه د نورو پخوانیو زندانونو په شان ټینگه او د غوز (چارمغز) له لرگي څخه جوړه وه. په یوه دړه کې یې د پنجرې په ډول یوه کړکۍ وه، د پنجره ډوله کړکۍ څخه مې لومړی څارن محمد ابراهیم ته وویل چې دروازه بېرته کړي. نوموړي په داسې حال کې چې رنگ یې الوتی ؤ وویل: «دروازه خلاصه کړم؟» ومې ویل: «هو، دروازه خلاصه کړه.» ویې ویل: «تاسو چې لوی آمر او ددې نظارتخانې مسئولیت په غاړه لرئ، نو دا دی ستاسو په امر دروازه خلاصوم.» چې دروازه بېرته شوه، ټول ننوتو، د نظارتخانې د دفتر د لومړی او دوهمې دروازې ترمنځ د نوکریوال کوټې او د نظارتخانې اداري شعبې شتون درلود. دوهمه دروازه خلاصه شوه، د معمول په خلاف د لومړۍ او دوهمې دروازې ترمنځ یو وسله وال سرتیری ولاړ ؤ. محمد ابراهیم ته مې وویل: «دا وسله وال سرتیری د څه لپاره؟» ویې ویل: کله چې ټانکونو ډزې پیل کړې د قراول نظام گډوډ شو، ما یو وسله وال سرتیری داخل ته راووست او ورته مې وویل چې وسله راوسپاري، له دې امله چې زه یې مسئول آمر وم، نو سرتیری هم یوه خطوه راوړاندې شو او په یوه لاس یې وسله راوسپارله او ویې ویل: «صاحبه ټوپک ډک دی.» ټوپک مې ورنه واخیست، شاجور مې ورنه وایست او ټوپک مې له مرمیو سره هغه سرتیری ته چې راسره ؤ ورکړ. وروسته بیا محمد ابراهیم د پوځي مقرراتو سره سم داسې راپور وړاندې کړ:

۹ تنه سیاسي بندیان په خپلو کوټو کې حاضر، د اول او دوهم وخت د گروپ ۱۸ ساتونکي افسران حاضر دي او د دریم وخت د گروپ ساتونکي افسران چې دنده یې د شپې له نیمایي څخه پیل کېږي تراوسه نه دي حاضر شوي، په نظارت خانه خیر خیریت دی، ناسوب او ناروغ نلرو.

ددې راپور په اوریدو سره چې سیاسي بندیان روغ رمټ دي، اندېښنه مې رفع

کې يې هم جذب او جلب او سياسي فعاليت کولو، چې وروسته بيا د د. خ. ا. گوند د پرچم څانگې د مرکزي کميټې پياوړی غړی او د د. خ. ا. گوند د پرچم د نشراتي ارگان د جريدې د امتياز خاوند ؤ.

د خ. د. ا. گوند د پاکستان له اپوزيسيون گوندونو په ځانگړې توگه د نيشنل عوامي گوند او خان عبدالغفارخان سره ټينگې او دوستانه اړيکې درلودلې. د ۱۳۵۷ کال د وری په مياشت کې کله چې خان عبدالغفارخان د کابل په وزير اکبرخان روغتون کې بستري او تر درملنې لاندې ؤ، مير اکبر خيبر له عيادت نه وروسته مازديگر مهال چې کله له روغتون نه د خپل کور (لومړی مکروريان) په لوري پياده روان ؤ دولتي مطبعې ته په مخامخ جاده کې چې په دوهم مکروريان کې وه د ناپېژاندو وسله والو چې په موټر کې سپاره وو د ډزو هدف وگرځېد او ووژل شو.

ناپېژاند فاعلين چې خيبر يې په عمومي لاره کې له پښو غورځولی ؤ د پښې له ځايه وتښتېدل او تر ننه پورې يې هويت څرگند نه شو.

د د. خ. ا. گوند د دغه قتل پړه د دولت په غاړه واچوله. د گوند په ځينو دننه کړيو کې دا آوازه خپره وه چې گنې دا وژنه د خلق گوند د حفيظ الله امين د ډلې له خوا ترسره شوې ده او د گوند ځينو کړيو ويل چې ددې وژنې مرتکب ببرک کارمل دی، ځکه په پرچم ډله کې خيبر ډېر مهم او د اعتبار وړ غړی، د فهم خاوند او د کارمل د ځای ناستی سيال گڼل کېده. په هرصورت مير اکبر خيبر په ډېر مرموز ډول ووژل شو او د د. خ. ا. گوند د دغه له وژنې پراخه سياسي گټه پورته کړه، د سياسي اختناق پنځه کلنه خاموشي د خيبر په مړينه ماته شوه او د د. خ. ا. گوند چې د دغه د وژل کېدو مسئوليت يې د هغه وخت د دولت په غاړه اچولی ؤ، د خپل سياسي قدرت په وخت کې چې د خيبر له مرگه لږ وروسته په لاس ورغی د هغه د وژلو د فاعلينو د موندلو لپاره يې هېڅ گام پورته نکړ. د تره کي، امين او کارمل په وخت کې يې هېڅ تلين ونه نمانځل شو، ان چې د قبر د جوړولو او ښايسته کولو کوم اقدام يې هم ونکړ.

د د. خ. ا. گوند چې د هغه له مرگ نه يې اعظمي فايده لاس ته وروړې وه د هغه د جنازې او تدفين د مراسمو په لومړۍ ورځ يې د تمساح اوښکې تويولې او د وخت له

شوه. ومې ویل: «د الچکونو کونجیانې راوړئ.» کونجیانې مې واخیستې او امر مې وکړ چې د ساتونکو افسرانو په ګډون دې ټول پرسونل د نظارتخانې په انګړ کې د لیکو په بڼه حاضر شي. ټول پرسونل مې وشمېره او موجودي مې کړ او قومانده مې ورکړه: «خولۍ او کرتۍ دې وایستل شي او لاسونه پورته»، د وسله والو سرتېرو له ډلې څخه مې یو تن د پهره کوونکي په توګه وربانديې وټاکه، ترڅو د دوهم امر پورې څوک له لیکې ونه وځي، او که څوک په خپل سر صف اخلال کړي وربانديې ګولۍ وچلوي.

په دې ترتیب د نظارتخانې په دننه کې هم له کومې ستونزې سره مخامخ نه شوو، ځکه ټول پوهېدل چې زه په خپله د نظارتخانې مسئول یم. یوسف سحر، سید رحیم او محمد ابراهیم لومړی نمبر اتاق ته ورغلو، سلامي مو ووهله او د نور محمد تره کي د لاس الچکونه مې خلاص کړل. تردې دمه نور محمد تره کی نپوهېده چې څه پېښ شوي دي، مبارکي مې ورته وویله، په حیرانتیا یې ماته کتل، یوسف سحر او سید رحیم چې زما له څنګه ولاړ وو له وړاندې نه یې له تره کی سره پېژند ګلوی نه لرله. ورته مې وویل: «د انقلاب کامیابي درته تبریک وایم، تاسو آزاد یاست.» ویې ویل: «دا څه اورم انقلاب؟ کوم انقلاب؟ دا ډزې د انقلاب دي؟ بنایي بله کومه توطیه په منځ کې وي.» ورته مې وویل: «هو، دا ډزې د انقلاب دي.» ویې ویل: «دا انقلاب د چا لخوا او له کومه ځایه پیل شوی دی؟» ومې ویل: «دا انقلاب د د. خ. ا. ګوند لخوا د څلورم نمبر قواو او د زرهدار د پنځلسم نمبر قواو په واسطه پیل شوی دی د دفاع او کورنیو چارو وزارتونه نیول شویدي او محمد داؤدخان له خپلې کابینې سره په ارګ کې کلابند دي.» ویې ویل: «ما چیرته بیایئ؟» ورته ومې ویل: «تاسو د افغانستان د راډیو ستېشن ته بیایو.» که څه هم ددې جملو په اورېدو سره یې شیبه په شیبه رنګ کې تغییر راتللو، خو څرنګه چې زه یې د موجوده رژیم د افسر په توګه پېژندلم سل په سلو کې یې باور نه کېده.» ویل یې: «زه چې په زندان کې یم او له بهر څخه هیڅ خبر نه یم.» لنډه دا چې تره کی مو بهر دهلیز ته راووست، باید ووایو چې تره کی او ببرک کارمل د غوايي د اوومې کودتا او وسله

وال پاځون څخه بې خبره وو، کله به مې چې د انقلاب د بریالیتوب تبریک ورته وایه نه به یې باوروله. بې خبرۍ او د حزب د لومړي او دوهم منشي له حیرانتیا ډکو څهرو ماته پوښتنه پیدا کړې وه چې دا لا څرنګه په خپل سر پاځون دی چې د ګوند مشران ورڅخه بې خبره دي؟ لږ وروسته معلومه شوه چې دا پاځون د حفیظ الله امین په نوښتګر فکر ترسره شوی ؤ، له همدې کبله وه چې د محمد داؤد د رژیم له نسکوریدو او واک ته د د. خ. ا. ګوند له رسیدو وروسته حفیظ الله امین چې ځان یې د غوایي د اوومې د انقلاب اتل باله تره کی او ببرک کارمل ته یې کومه اعتنا نه لرله. د ځینو لاملونو له کبله یې ونشوای کولای چې له لومړۍ ورځې نه سیاسي قدرت په خپل لاس کې واخلي، تره کی او کارمل بندیان او له منځه یوسي. د شوروي اتحاد کمونست ګوند، د کی جی بی سازمان او تر یوې کچې پورې د د. خ. ا. په ټول سازمان کې یو شمیر موجود ملحوظات د دغه کار مخه نیوله. په ډاګه ولیدل شول چې څه ډول یې د دریو میاشتو په موده کې کارمل او د هغه ډله فرار او له صحنې نه ګوښه کړل او یو نیم کال وروسته یې تره کي وواژه او د ګوند او دولت لومړی مقام یې لاس ته راوړ، د ثور وسله وال پاځون د د. خ. ا. ګوند د کوم مخکیني طرحه شوی پلان له مخې نه بلکې د حفیظ الله امین د شخصي ارادې له مخې ترسره شوی ؤ.

دوهم نمبر اتاق ته ورغلم، د ببرک کارمل الچکونه مې خلاص کړل، هغه هم خبر نه ؤ، د انقلاب مبارکي مې ورکړه، په حیرانتیا یې ماته وکتل، هغه مې هم دهلیز ته رابهر کړ، په دې ځای کې دوه شپې او ورځې تره کی او کارمل یو له بله خبر نه وو په داسې حال کې چې دواړه یو د بل په څنګ کې سره په ګاونډیو اتاقونو کې وو، یو تربله یې سره نه وو لیدلی، په دې وخت کې یو تربله سره ترغاړې وتل، په همدې توګه دستګیر پنجشېري، عبدالحکیم شرعي جوزجاني، ډاکټر شاه ولي، محمد حسن ضمیر صافي، حفیظ الله امین، بارق شفیعي او سلیمان لایق یو په بل پسې مې راخوشې کړل. خو حفیظ الله امین داسې لکه چې د موضوع نه یې اطلاع لرله ډیر خوښ ښکاریده. زه هم د خپلو عملیاتو له ترسره کولو خوښ او خوشحاله وم. د بې احتیاطۍ او احساسي کېدو نه راڅخه د حفیظ الله امین د الچک کونجي

ماته شوه او د هغه د لاس یو الچک بند پاتې شو، کله مې چې نهه واړه یوځای د نظار تخاني انګړ ته راوستل ټولو یو بل سره روغبړ او یو د بل مخونه یې ښکل کړل. امین تره کی او نورو ته د انقلاب د بریالیتوب تبریک وواېه. تره کی ورنه وپوښتل چې: «تاسو له انقلاب نه خبر یاست؟» ویل: «هو، کله چې دولت زمونږ او ستاسو نیولو ته اقدام وکړ، ما هم د اردو ملګرو ته د وسله وال پاڅون قومانده ورکړه، له نېکه مرغه زما د نیولو لپاره زما د وررور یو دوست او آشنا پولیس افسر راغلی ؤ، زه یې له تالاشۍ نه وروسته په همغه شپه په خپل کور کې تر څارنې لاندې پرېښودم، ما هم په همغه شپه اردو ته د انقلاب قومانده صادره کړه، چې پایله یې د سر په سترګو وینو.»

دستګیر پنجشیري تر دغه مهاله حیران او چوپ ولاړ ؤ، په داسې حال کې چې په سترګو کې یې ماته کتل، امین ته یې وویل: «ښېښکه چې د وطن بچی او د ډګر ځوان یې.»

د سلیمان لایق له سترګو اوښکې روانې وې، ورته مې وویل: «ولې اوښکې تویوې؟» ویل: «د خوښۍ اوښکې دي، ما ددې حالت هېڅ تصور هم نه کاوه، اوس نپوهېږم چې خوب وینم او که په ویښه یم.»

د نظار تخانې په انګړ کې دغه لنډې خبرې اترې تبادله شوې، تره کی او کارمل چې خپل ساتونکی افسران په یوه لیکه کې بندیان ولیدل، ویې ویل: «دا افسران ډېر ښه او د ښه کلتور خاوندان دي، دوی مو ولې مجازات کړی دي؟» ومې ویل: «دا د تکتیکي او موقت وخت لپاره ده، کله چې تاسو له نظار تخانې څخه ووځئ، هغوی آزاد دي او خپلو کورونو ته به ځي.»

رېښتیا دا ده چې دا هرڅه د هغه څه برعکس وو چې د تره کی د رژیم په وخت کې به ویل کېدل. دا چې د ثور انقلاب د د. خ. ا. ګوند د ډله ییز هوډ او لارښودنې ترمخه چې د کمونستی ګوندونو یو اصل دی ترسره شوی ؤ، داسې نه وه، څکه د ګوند لومړي او دوهم منشي اصلاً هېڅ خبرتیا نلرله او د ثور د اوومې دانه وانه او خورې ورې ډزې یې د ځان په خلاف ګڼلې چې آیا راتلونکی به یې څه وي، او حفیظ

الله ادعا کوله چې د پاڅون قومانده يې په يوازې ځان صادره کړې ده، له همدې کبله يې هغه د ثور د انقلاب د رښا قوماندان باله. ريښتيا دا ده چې د نيولو په لومړۍ شپه مې امين له تالاشۍ نه وروسته نظارتخانې ته نه ؤ راوستی او دغه شپه يې په خپل کور کې تيره کړې وه، که له فرصت نه يې گټه پورته کړې وي لکه څرنگه يې چې په خپله ادعا کوله نو له حقيقت نه به لرې نه وي. تره کی، کارمل او د د. خ. ا. گوند د مشرتابه پلاوي نورو غړو له وړاندې نه پرېکړه کړې وه، کله چې د رژيم لخوا د د. خ. ا. گوند مشران ونيول شي او بنديان شي نو د پوځې برخې مسئول ملگرې دې پرته له ځنډه د رژيم د رانسکورېدو لپاره پاڅون وکړي، خو دا پرېکړه هېڅکله هم د گوند په ليکو کې نه وه خپره شوې او څوک ورنه خبر نه وو.

## له نظارتخانې نه تر راډيو افغانستان پورې:

سياسي بنديان خوشې شول، د کابل ولايت بې واکه شوی ؤ، کارکوونکی، افسران او سرتيری په خپل سر يو خوا او بله خوا گرځېدل. له نظارتخانې نه چې ووتو، بنديانو د خپلو کوټو له کړکيو او روشندانونو څخه مونږ ته کتل او د «ژوندی دې وي انقلاب، مونږ بېگناه يو، تاسو چې خوشې شوئ مونږ هېر نکړئ» شعارونه يې ورکول. د کابل په توقيف ځای کې جنايي مجرمان لکه قاتلان، غله، جوارگر، جيب وهونکی او د ټولنې ضرري انسانان راټول شوی وو، د د. خ. ا. گوند مشران چې واک ته ورسېدل نو د تېرو رژيمونو په ټولو کړنو يې د بطلان کرښه راکښله، ان چې په ټول افغانستان کې يې جنايي حرفوي مجرمان پرېښودل او د هغوی اړونده دوسيې يې په اور وسيزلې او په زرگونو جنايي مجرمان يې په خلاص مټ ټولنې ته وړاندې کړل، چې دا په احساساتو ولاړ عمل يو بې سنجشه او له جنايته ډک عمل گڼل کېده، ځکه د زرگونو مظلومو انسانانو حقوق يعنی حقوق العباد تر پښو لاندې شول او د جنايي پېښو کچه پورته لاړه. کله چې خپلو موټرونو ته ورنږدې شوو، په سلگونو لارويو د ننداري په ډول زمونږ له موټرونو چاپېره کړۍ جوړه کړې وه، شېبه په شېبه د ننداره کوونکو شمېر زياتېده، په مشکله مې په شته موټرونو کې مشران

ځای پرځای کړل، خو د خلکو د ګڼې ګوڼې له کبله مو د حرکت کولو مجال نه درلود ، په پرله پسې توګه شعارونه اورېدل کېدل او هرڅه هڅه کوله چې مشران په خپلو سترګو ووېني او د خوشې کېدو مبارکي ورته ووايي ، او خپلې شخصي هيلې ورته ښکاره کړي، ان چې خلک د موټرونو په دروازو او بانټونو پورې نښتي وو. ما له خپلو دوه تنو راسره افسرانو سره د ترافيک وظيفه په غاړه واخيسته، ورو ورو مو موټرو ته د تګ لاره برابروله. په ډېره سختـه د خلکو په ګڼه ګوڼه کې د سالنګ واټ اصلي لارې ته ورسېدو، او خپل تګ ته مو دوام ورکړ. د سالنګ واټ، د صدارت څلور لارې او د آريانا هوټل د څلور لارې څخه د افغانستان راډيو ته ورسېدو. د لارې په اوږدو کې ځو ځايه زمونږ موټرونه د انقلابي ګروپونو لخوا ودرول شول، خو ځرنګه چې يوسف سحر او سيد رحيم ته د ورځې نوم معلوم ؤ نو د هغې په ښودلو سره به مو خپل وړاندې تګ ته دوام ورکاوه. کله چې مې مشران د راډيو په دستګاه کې دننه له موټرونو نه راکښته کړل، نو زه له خپلو راسره ملګرو سره د کورنيو چارو وزارت ته ستون شوم، مابښام نږدې ؤ، جګتورن توفيق احمد ته مې د خپلو کړنو په اړه راپور ورکړ.

## د کورنيو چارو په وزارت کې د بنديانو آزادونه:

توفيق احمد چې په خير سره راپور واورېد ډېر خوښ شو او زه يې په غېږ کې ونيولم، بې له شکه چې اوس زمونږ انقلاب بريالی دی، مونږ د د. خ. ا. ګوند د راډيويي اعلاميې انتظار باسو، چې د خپل انقلابي رژيم بری د افغانستان خلکو او نړيوالو ته اعلان کړي.

کاشکي چې په هغه وخت کې زه پوهېدلی. د افغانستان د خلکو د بدمرغه کېدو لپاره مې دغه نوکر صفته سياستوال په ناخبرۍ سره له زندان څخه خوشې کړل، دغه د روس ايجنټان او د قدرت وږي مې نه پېژندل او دوی د خلاصون لپاره مې سر په تلی کې کېښود. که زه پوهېدای چې ددوی په راخوشې کولو او واک ته په رسېدو به زما هيواد له داسې خونړيو پېښو سره مخ کېږي چې تر نسل نسل پورې به

هغې ته رسیدلی زیان جبران نشي. که زه پوهېدلای چې دا زمونږ په ښمنانو پلورل شوی مشران دي هېڅکله به مې دا کار نه ؤ کړی، او کولای مې شول چې په ډېره آسانۍ سره او پرته له کوم جنجال څخه ۸ کسان له منځه یوسم او د ثور ورانوونکی او تش په نوم انقلاب د تل له پاره له ناکامۍ سره مخ کړم، «چرا کاری کند عاقل که باز آرد پشیمانی» باید اعتراف وکړم چې په ناخبرۍ او د خپل خام احساساتي فکر تر اغېز لاندې د راتللو له امله مې د هغوی په خلاصون کې فعال رول ولوباوه.

اصل واقعیت دا دی چې د حیدر رسولي او قدیر نورستاني په واک ته رسېدو سره د اردو او پولیسو ټول افسران خوابدي شوي وو او په زړه کې له دولت نه ناخوښه وو او کرکه یې لرله. هېڅ ورانډوینه نشوای کولای چې د داودخان د بې کفایته او وروست شوي رژیم په رانسکورېدو سره به په هیواد څه بلا رانازله شي. طبیعي ده چې انسانان له نوښت او بدلونونو په اړه ښه چلن کوي، زه هم ځوان وم، احساسات مې لرل، چې له همدې امله د د. خ. ا. گوند د مشرتابه پلاوي په داخلي ماهیت نپوهېدم، ځکه نو د واکمن نظام د رانسکورولو په موخه چې د حیدر رسولي او قدیر په شان بې کفایته کسانو په لاس اداره کېده د خپلو احساساتو له مخې له پاڅون کوونکو سره یوځای شوم، وروسته چې د حزب د مشرانو په اصلي شخصیت او د هیواد د لوړو مصالحو په وړاندې د هغوی په کړنو وپوهېدم او د هغوی کړنې او شخصیتونه راته په ډاگه شول نو لومړی مې په د. خ. ا. کې له شمولیت نه استعفی وکړه او بیا د تقاعد په اخیستو سره له دولتي دندې گوښه شوم، که څه په دې لاره کې مې د مخفي پولیسو د تعقیب او سیاسي حالت له نظره یوشه ستونزې ولیدلې د کلنیو ترفیعاتو په ترڅ کې مې مشکلات وزغمل، خو له هیواد سره د عشق او وجدان په حکم له ټولو امتیازاتو څخه تېر شوم او پرته له دې چې له بل کوم سیاسي خوځښت سره تړاو پیدا کړم له ټولو سیاسي فعالیتونو څخه مې ځان گوښه کړ. د سیاست ټیکه دارانو ته جوته ده چې زمونږ د هیواد ښې او کیڼ سیاسي جریانونه زمونږ د هیواد د خلکو له نوښت او ارادې څخه سرچینه نه نیسي، بلکې د پردیو په اراده او له غرضه ډکه ایډیالوژي یې په مخکې نیولې او د قدرت غوښتلو یو شمېر

اجیرانو په یوه او بل نوم د هیواد په دننه او بهر کې گوندونه جوړ کړي دي او زموږ هیواد یې د سیاسي غوبل او راکړې ورکړې ډگر گرځولی دی، چې په پایله کې یې د سر په سترگو وینو چې افغانستان خپل ټول مادي او معنوي ارزښتونه او سیاسي اعتبار له لاسه ورکړی دی، ددې متل په مصداق چې وایي: «یار که بی وفا برآمد شرمنده ء انتخاب خویشم.»

وروسته له دې چې په حقیقت پوه شوم له سیاسي سوداگرو سره مې موضوع غوڅه کړه او په همدې تصمیم سره مې خپل وجدان ته قناعت ورکړی دی.

باید ووایم چې سیاسي بندیان ټول ۹ تنه وو، یو تن محمد حسن ضمیر صافي د حزبي مشرانو له ډلې څخه نه ؤ. اگر که هغه هم په هغه وخت کې د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځی رئیس او استاد ؤ او د پرچم له ډلې سره یې تړاو درلود، خو دا چې څرنگه د گوندي مشرانو په ډله کې زندان ته راغلی ؤ په اړه به یې وروسته وغږیږو.

ماښام ته نږدې ږه له راډیو افغانستان څخه د کورنیو چارو وزارت ته راستون شوم، د راپور له بیانولو وروسته مې ولیدل چې بندیان تراوسه لا د غونډېدو په ځای کې پر ځمکه ناست دي. جنرال محمد طاهر، د وزارت معین دشتي او د کورنیو چارو وزارت سکرتر په کې نه لیدل کېږي. له جگتورن نه مې د هغوی په اړه وپوښتل، په غوږ کې یې راته پټ وویل: «د خپل عمل په سزا ورسول شول.» ومې ویل: «له نورو بندیانو سره څه چلن کوئ؟» ویې ویل: «ستا انتظار مي درلود، چې ستاسو د پېژندگلوۍ له مخې په هغوی کې تصفیه وشي. هغوی چې شخصاً له قدیر او یا سلطنتي کورنۍ سره تړاو لري، هغوی د اوس مهال لپاره په وزارت کې له ځانه سره ساتو او پاتې نورو ته رخصت ورکوو.»

ما د بندیانو په ډله کې غلام فاروق یعقوبي، عبدالباقي، محمد علي یاور او د استخباراتو مدیر محمد عیسی لیدلی وو، لومړني درې تنه د پرچم له ډلې سره او محمد عیسی د قدیر د ورور اوښې په هغه پورې له تړلو کسانو څخه وو. جگتورن ته مې وویل چې: «دلته هېڅوک له قدیر او یا دربار سره تړاو نه لري او ټول پخواني مسلکي کارکوونکي دي چې په تېرو رژیمونو کې یې هم په خپلو مسلکي ځانگو کې کار کاوه.»

جګتورن وویل: «چې داسې ده، نو له دې امله چې اوس ما بنام دی ناوخته دی او هرڅوک خپلې خولې او کورتۍ په آسانۍ سره نشي پیدا کولی نو کورتۍ او خولۍ دې یې په خپل ځای پاتې وي او په خپله دې پنځه پنځه تنه په نوبت سره له وزارت نه ووځي.»

حسن ضمیر صافي مې پېژندلو، له دې پېښې یوه ورځ وروسته مې د هغه په کور کې له هغه سره ولیدل او د قضیې په اړه مې ورنه وپوښتل. را ته یې ویل چې: «د خیبر له وژلو وروسته یې یوه ورځ په یوه لکچر کې محصلینو ته د دغه بې رحمانه قتل مظالم بیان کړي وو او د هغې مسئولیت یې د دولت په غاړه اچولی ؤ، او محصلین یې د دغه ترور په وړاندې د دولت پر ضد پارولي وو.»

همدا راز د ډاکتر ضمیر په نوم یو بل تن چې هغه هم د مکروریانو په همغه بلاک کې هستوګن ؤ چې د پرچم ډلې فعال کارکوونکی او د استخباراتو تر څارنې لاندې ؤ بنایي په غلط نوم نیول شوی وي، په هرصورت، خو حسن ضمیر صافی د د. خ. ا. د ګوند د مشرانو په کتار کې زندان ته راوستل شوی ؤ چې تر خوشې کېدو وروسته یې تر یو څه وخته پورې خپلې دندې ته ادامه ورکړه او بیا وروسته یې د ګوند له لیکو څخه هم استعفی ورکړې وه.

د ضمیر صافي په څېر په لسګونو انسانانو چې د هېواد په ګوټ ګوټ کې د د. خ.ا. ګوند د مشرانو په اصلي ماهیت او د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په مستقیمه مداخله باندې پوهېدلي وو د حزب له لیکو څخه یې ځانونه ګوښه کړل.

هغه قضاوت چې نن ورځ د د. خ. ا. د ګوند او د هغې د ځواک غوښتونکو مشرانو په اړه شتون لري، د غوايي د کودتا نه وړاندې قضاوت سره ډېر توپیر لري. په هغه وخت کې د عدل، برابرۍ، کور، ډوډۍ، کالیو، فرد د فرد له استثمار څخه د خلاصون، ځمکه د هغه چا ده چې کار په کې کوي، د ښځو او نارینه و د حقوقو برابري او په سلګونو نور مترقي شعارونه، رښتیا هم که د عمل جامه یې اغوستی وای نو نن به افغانان له بدمرغیو او دربه دریو سره نه وو مخامخ، خو افسوس او سل افسوس، چې د سیاسي واکمنۍ پر مهال یې د هغو ټولو شعارونو او پروګرامونو په خلاف چې د عملي کولو کرښه یې راکښلې وه عمل وکړ.

## د دندې پای او له خطره ډکه شپه:

په کورنیو چارو وزارت کې پرته له موټرونو او انقلابي کارکوونکو څخه هېڅوک نه وو پاتې. جګتورن راته وویل چې اوس ستا خوښه چې د شپې له مونږ سره په وزارت کې پاتې کېږې او که کور ته ځې، ستا له ګټورو او ریښتینو همکاریو څخه یوځل بیا یوه نړۍ مننه کوم. ورته مې وویل که د شپې لخوا کومه ضروري دنده نه وي نو اجازه راکړئ چې کور ته ولاړ شم ترڅو چې فامیل مې اندېښمن نه وي. جګتورن د بیردم چلوونکی ته امر وکړ چې ما کور ته ورسوي، خو ما ممانعت وکړ او ومې ویل اړینه نه ده چې په داسې حساسه شیبه کې یوه جنګي وسیطه له وظیفې لرې واقع شي، که د ټیوټا موټر مې د کابل ولایت تر امنیه قوماندانۍ پورې ورسوي، کیدای شي زما جیپ موټر به په پخوانی تم ځای کې ولاړ وي. جګتورن د ورځې نوم زما په لاس ولیکه، ترڅو د لارې په اوږدو کې د اړتیا په وخت کې ورڅخه استفاده وکړم. ټیوټا موټر زه د کابل ولایت لویدیزې دروازې ته ورسولم، خپل خړ رنګه جیپ مې له ورایه ولید چې په خپل ځای کې ولاړ دی. ټیوټا موټر مې رخصت کړ. همیشه به مې یوه کونجی له ځانه سره ساتله، خپل موټر ته پورته شوم، هرڅو مې چې سویچ وواهه چالان نه شو، څرګنده شوه چې ډریور د ډزو په مهال موټر له وزارت نه راایستلی دی، په خپل تم ځای کې یې درولی دی او د هغې روکر (...) راایستلی او په خپله هم کور ته تللی دی. بله چاره مې نه لرله د سالنګ واټ جادې ته ووتم، سر مې لوڅ ؤ، د پولیسو پطلون مې اغوستی ؤ، عسکري بالاپوښ مې هم په تن ؤ چې زما بڼه یې بیخي بدله کړې وه. ومې لیدل چې یو ټیکسي موټر د کارته پروان له خوا د پل باغ عمومي په طرف روان دی. لاس مې ورکړ، ودرېد، له اهل هنود څخه دوه تنه په شاتنی سیټ کې ناست وو. ومې پوښتل: «چېرته ځئ؟» ویې ویل: «خپل کور ته د میرویس میدان په لوري ځو.» زه هم موټر ته پورته شوم ومې ویل: «مجبوراً زه هم د علی آباد په طرف ځم.» موټر روان شو. کله چې ټیکسي د پلازا هوټل څلور لارې ته ورسېد، د دهمزنګ په طرف وڅرخېد. هنودانو وویل: «ودرېږئ مونږ همدلته کښته کېږو.» ورته ومې ویل: «ولې کښته کېږئ، زما څخه مه

وېرېږئ، زه هم خپل کور ته د کارته سه پل سرخ ته ځم، له دې امله چې ما سره د ورځې نوم شته، نو که په لاره کې کومه اړتیا پېښه شي څوک مو نشي ایسارولی او له دې امله چې زما خپل موټر چالان نشو، ناوخته شویدی نو زه هم ستاسو له تیکسي موټر څخه په استفاده کولو سره کورته ځم.» له دې امله چې زما پیسې او سګرټ د کورتي، په جیب کې پاتې شوي وې او د تیکسي کرایه مې هم نه لرله، نو تینګار مې کاوه، خو هندوان چې سوداګر وو او شتمن وو وېرېدل چې هسې نه په هغوی حمله ونکړم. عجیبه صحنه وه، زه د تیکسي او کرایې به غم کې وم او هندوان د خپل ځان او پیسو په غم کې وو. تیاره خپره شوې وه، په ښار کې تیکسیان نه ګرځېدل، ما په خپل زړه کې هوډ وکړ که هندوان له موټر نه کښته هم شي زه په همدې تیکسي کې کورته ځم او هلته به کرایه ورکړم. یوځل بیا مې هندوانو (اهل هنود) ته کیسه تېره کړه چې څه ډول له خپل موټر نه پاتې شوی یم او له ما څخه دې کومه وېره او اندېښنه نه کوي، بلکې د ورځې له نوم په لرلو سره به له هغوی سره مرسته وکړم.

ډېر حساس وخت ؤ، هندوانو هم بله کومه چاره نه درلوده ترڅو چې غاړه یې کېښوده، هرڅه چې کېږي یوځای سره روان شوو. د دهمزنګ څلورلارې ته چې ورسېدو، زمونږ موټر نوکریوال ګروپونو ودراوه، زه له موټر نه راکښته شوم او مؤظف شخص ته مې د ورځې نوم ورکړ، زما رنګ، جامو او لوڅ سر ته یې چې وکتل شکمن شو، زه یې خپل قوماندان ته بوتلم، د خپل دوه رنګه لباس او لوڅ سر کیسه مې ورته تکرار کړه. هغه له توفیق احمد سره په مخابره تماس ونیو ما هرڅه اورېدل چې توفیق ورته ویل چې کورتي، او خولۍ د ټولو افسرانو په وزارت کې زمونږ سره دي، د چا په لاس مې چې د ورځې نوم لیکلی دی هغه زمونږ د همکارانو له جملې څخه دی. په خپل جیپ موټر کې په پل سرخ سیمه کې خپل کور ته ځي. د دهمزنګ د پوستې قوماندان ورته وویل چې ټولې نښې ریښتیا دي، خو په تیکسي موټر کې د دوه تنو هندوانو سره د میرویس میدان په لوري روان دی. توفیق احمد ددې خبرې په اورېدو سره حیران شوی ؤ. ما ورباندې غږ وکړ چې ورته ووایه چې ډریور مې د موټر روکر (...) له موټر څخه کښلی ؤ او له ځانه سره یې وړی ؤ، ناچاره شوم د

دولت نه یې د هغه د قاتلینو غوښتنه کوله. خو یو میاشت وروسته یې چې په خپله حکومت جوړ کړ، حتی د هغه نوم یې هم په خوله وانه خیست او د هغه وژنه تر اوسه پټه پاتې ده.

## سیاسي جنازه او ستر لاریون:

د وژل شوي میر اکبر خیبر کور چې په لومړي مکروریان کې ؤ، جنازه یې هلته یوړه. د خلق او پرچم مشرانو، چې دغه مهال یې د روسانو په منځګړتوب اتحاد کړی ؤ، په جنازه باندې راټول شول. د جنازې د تکفین او تدفین مراسم یې داسې پلان کړي وو چې د کابل، پروان، غزنی، وردګ، لوګر، کاپیسا، ننګرهار او لغمان ولایتونو د ولایتي کمیټو او د کابل ښار له ښاروالو نه په ډېر شمېر کې خلک د جنازې او فاتحې په مراسمو کې ګډون وکړي. داسې پلان یې طرحه کړی ؤ چې سبا ته د ورځې د لسو بجو په شاوخوا کې د هغه جنازه د هغه له کور نه په یو ستر مارش سره پورته کړي، د مکروریان له پل څخه تېر شي، او د دولتي مطبعې په مخامخ عمومي لاره (هغه لاره چې میر اکبر خیبر په کې وژل شوی و) جنازه تېره کړي. د امریکا د متحده ایالاتو د سفارت له مخې تېر شي، د پل خشتي جومات ته یې یوسي، هلته یې جنازه وکړي، او بیا د جاده میوند په لاره جنازه په اوږو واخلي او شهدای صالحین هدیرې ته یې یوسي. له مکروریان څخه تر هدیرې پورې نږدې پنځلس کیلومتره واټن ؤ.

جنازه د ورځې د لسو بجو په شاوخوا کې د ګوند د نږدې لس زره غړو په ګډون د یو ستر لاریون په بهیر کې د پلان سره سمه پورته شوه او په ټاکلې لاره پرته له نقلیه وسایطو، د یو منظم ستر مارش په ترڅ کې په اوږو واخیستل شوه، د امریکا د سفارت مخې ته او د دولتي مطبعې په جاده کې په څو نږدې نږدې ځایونو کې له مخکې نه ټاکل شوي شعارونه د مؤظفو اشخاصو او افرادو په واسطه په لوړ غږ او په ډله ییزه توګه پورته کېدل. کوم وخت چې جنازه د امریکا د سفارت له مخې نه تېرېدله: «مرګ په تورو ارتجاع، مرګ پر نړیخوار امپریالیزم او مرګ په سړي

سالنگ واټ په جاده کې له دوه تنو هندوانو سره چې د میرویس میدان په طرف روان وو په تیکسي کې ورسره کښېناستم. بله چاره مې نه درلوده، وروسته توفیق احمد د دهمزنگ د پوستې قوماندان ته وویل چې لباس یې له نښې سره سم وي، په تکلیف کوئ یې مه زمونږ له ریښتنیو همکارانو څخه دي. پرېږده چې کورته لاړ شي. دلته هندوان زما په ارزښت وپوهېدل، د علی آباد څلور لاري ته ورسېدو، تیکسی ودرېد، ما غوښتل چې کښته شم او پلې لاړ شم، ځکه لږه لاره پاتې وه، هندوان چې زما احسان مند وو، تیکسی ډریور ته یې وویل چې لومړی ما پل سرخ ته ورسوي او وروسته بیا دوی میرویس میدان ته بوځي. د پل سرخ د دوکانونو په مخ کې زه له تیکسی نه کښته شوم، غوښتل مې چې له کوم دوکاندار څخه پیسې واخلم او خپله برخه کرایه ورکړم، اهل هنود وویل، فرق نه کوي مونږ تیکسی دربست نیولی دی. هغوی د میرویس میدان په طرف وخوځېدل او زه د خپل کور دروازې ته راغلم. د پخوا په شان مې ۳ ځله د دروازې د زنګ تکمه کیمنډله، دوه درې ماشومانو دروازې ته رامنډې کړل، خپل کور ته ننوتم، خدای بخښلې مور مې چې تر لمانځه وروسته یې د دعا لپاره لاسونه لپه کړی وو چې خدای یې زوی روغ رمټ کور ته راستون کړی و، خدای (ج) یې دعا قبوله کړې وه. د مور لاسونه مې ښکل کړل، په غېږ کې یې ونیولم او د خدای (ج) شکر یې په ځای کړ. د کور ټول واړه او غټ خوشحاله شول او راڅخه راچاپېره شول.

انجنیر... د کاکا زوی مې چې په کانو او صنایعو وزارت کې یې د دارالامان په سیمه کې دنده درلودله د سختو ډزو له امله په دې نه ؤ بریالی شوی چې په قلعهء زمان خان کې خپل کور ته ولاړ شي، زمونږ په کور کې ایسار پاتې شوی ؤ. هغه هم د پرچم ډلې له غړو څخه یو ؤ. چې کوچنیان ویده شول، د ټول جریان کیسه مې ورته تېره کړه.

د افغانستان راډیو ملي نغمې او شعارونه خپرول، د څلورم نمبر زرهدار ځواکونو جګړن محمد اسلم وطنجار او د هوایي ځواکونو ډګروال عبدالقادر د د. خ. ا. ګوند اعلامیه په پښتو او دري ژبو خپره کړه، خو زه پوه شوم چې لا هم کار سرته نه

دی رسېدلی. محمد داودخان او د کابینې غړی یې په ارګ کې ژوندي دي. ملي ګارډ او ځینی پلوي پوځی قطعات مقاومت کوي او له انقلابیانو سره جنګیږي. ټوله شپه په کابل ښار کې د درندو او سپکو ډېلابېلو وسلو ډزو دوام درلود. د شپې بندیز له ۸ بجو څخه نافذ شوی و، همغه لعنتي قیود چې څوارلس کاله یې دوام وموند، او س هم جوته نه ده چې دغه منحوص او بدشګومه بندیز به ترڅو پورې نور دوام وکړي.

ډول ډول اندېښنې راته پیدا کېدلې، ټوله شپه ویده نه شوم، کله به مې له ځانه سره فکر کاوه چې که د دولت پلوي قطعات برلاسه شي زما سرنوشت به څه وي، که له بیروني جنرالانو او پوځي قطعاتو سره د محمد داودخان ارتباط ټینګ شي، وسله وال پاڅون سل په سلو ناکام دی، خو د کورنیو چارو او د دفاع بې کفایته وزیران چې په ارګ کې محاصره شوي وو هېڅ کار یې د دولت په ګټه ترسره نه کړای شو.

زه د مرګ او ژوند ترمنځ په پوله ولاړ وم، ترڅو پورې چې د راډیو پروګرام خپریده نو د محمد داودخان د نیولو او نسکورېدو د خبر د اورېدو انتظار مې کاوه. پروګرام پای ته ورسېد او د هغه په اړه کوم خبر نه ؤ. اندېښنه مې په غم او خفګان بدله شوې وه، ټوله شپه مې په ویښه، غم او اندېښنو کې تېره کړه.

## د غوايي ۸ مه د جمعې ورځ:

ما ټوله شپه خوب نه ؤ کړی، د ورځې په رڼا کې مې د خپل کور د بام له پاسه هر لوري ته وکتل، سختې درنې ډزې وې. سهار د ۷ بجو په شاوخوا کې دوه جټ جنګي الوتکو د ریشخور فرقې له پاسه د تاج بېګ غونډۍ د دارالامان د ماڼۍ په شاوخوا کې په بمبارۍ پیل وکړ. د دولت په پلوي قطعاتو باندې شیبه په شیبه بمبارۍ شدت موند، په کوم ځای چې بمباري کېدله هلته لوګی او د اور لمبې پورته کېدې، راډیو همغه شعارونه او ملي نغمې خپرولې، ځمکنۍ جګړې او هوايي بمبارۍ زور اخیستی ؤ.

د ثور ۸ مه د جمعې د ورځې د ۱۰ بجو په شاوخوا کې دا خبر خپور شو چې مفهوم یې دا ؤ:

سردار محمد داؤد، سردار محمد نعیم او د کابینې ځینې غړي چې په ارگ کې محاصره وو د پوځي انقلابي شورا مکررې غوښتنې ته يې چې د هغوی د تسلیمېدو په اړه وه مثبت جواب ونه وایه، بلکې به سرزورۍ سره يې خپل مقاومت ته دوام ورکړ په پای کې د انقلابي شورا لخوا د خپلسرۍ اعمالو په سزا ورسول شول، ټول وځپل شول او د تل لپاره د محمد زایانو د سلطنتي کورنۍ د واکمنۍ تغر له افغانستان څخه ټول کړای شو.

دغې اعلامیې په ډاگه کړه چې وسله وال پاڅون کامیابۍ ته رسېدلی دی او د محمد داود رژیم سقوط کړی دی، د محمد داؤد د وژل کېدو خبر له راډیو څخه په تکرار سره خپرېده.

پوځي انقلابي شورا د مرکز او شاوخوا ټولو قطعاتو ته بلنه ورکړه چې په ټول هیواد کې نظم او امنیت مراعات کړي او له پوځي انقلابي شورا سره خپل پیوستون اعلان کړي.

د پوځي شورا قرارگاه چې له راډیو افغانستان څخه د خواجه رواش هوایي ډگر ته لېږدول شوې وه، د محمد داؤد له وژل کېدو وروسته ارگ ته ولېږدول شوه، لارښودنې او حکمونه يې له هغه ځایه صادرول.

د جمعې له نیمایي ورځې وروسته چې د محمد داؤد دولت په بشپړه توگه نسکور شوی ؤ د هغه د وژل کېدو خبر راډیو افغانستان په پښتو ژبه داسې خپور کړی ؤ:

«د افغانستان زړورو هیوادوالو:

د دولت ضد ملي او فساد پالونکی دستگاه او شړېدلی سلطنتي نظام، جاسوسي شبکې او د هغوی وتلی استازي محمد داؤد د آزادۍ بخښونکی هوایي او ځمکنی قوتونو د منظمو ضرباتو لاندې د گران هیواد افغانستان د ټولو ملي دیموکراتیکو قوتونو په کمک وځپل شو.»

د جمعې د ورځې په اوږدو کې دا خبر له شعارونو او ملي نغمو سره په وار وار خپرېده. ټانکونه او زغره وال وسایط په ټولو څلور لارو ولاړ او ټولو وزارتخانو ته

ننوتي وو، بازار او مارکیټونه تړلي وو، پوځي قطعات او ګزمې په ښار او جادو کې په حرکت کې وې، عوام الناس په ښار کې نه تر سترګو کېدل.

## په افغانستان کې د لومړني دیموکراتیک دولت جوړېدل:

د ثور ۷ مه د پنجشنبې ورځ او د ثور ۸ مه د جمعې ورځ د کابل ښار د دولت پرضد د انقلابي قوتونو په پوځي مارشونو تېره شوه. سردار محمد داؤد د کابینې له یو شمېر غړو او خپلې کورنۍ سره په ارګ کې په محاصره کې وو، په ارګ او د ریشخورو په فرقه او نورو قطعاتو باندې هوايي بمبارۍ د هغوی پوځي مورال کمزوری کړی ؤ. د دولت پلوي قطعات یو په بل پسې د جګړې له ډګره وتل او تسلیمېدو ته اړ شول. د شاوخوا قطعات لکه د ننګرهار فرقه چې د جنرال یونس خان په قومانده د کابل په طرف په حرکت کې وه په شا وتمبول شوه او نور د شاوخوا اکثره قطعاتو له مرکز سره اړیکې پرې شوې وې. د ریشخور د فرقې قوماندان چې د خپلې فرقې په قرارګاه کې ؤ ویې نشوای کړای چې خپل قطعات د انقلابیانو پرضد سوق کړي، ځکه چې هغه په خپله قرارګاه کې محاصره شوی ؤ. د کارۍ او اکتیف قطعات او نور غټ او واړه جزو تامونه د د. خ. ا. ګوند د غړو تر قوماندې لاندې راغلي وو، دولتي دستګاه له خپلو ټولو امکاناتو سره له دې ډول پېښې سره د مخامخېدو هېڅ اټکل نه ؤ کړی. د دفاع او کورنیو چارو وزیران په خپله عیاشۍ، قاچاق او د شتمنیو په راټولولو بوخت وو، ان چې د بغاوت او کودتا پیل کېدو په مهال د د. خ. ا. ګوند ۸ تنه مشران د تره کي او کارمل په ګډون د دوی په اسارت کې وو، دغې دستګاه ونه کړای شول دغه بندیان چې د تاج او تخت مدعیان وو له خپلې مخې څخه لرې کړي.

د ثور په ۸ مه د جمعې په ورځ محمد داؤد له خپل ورور محمد نعیم د بهرنیو چارو وزیر، عبدالاله د مالیې وزیر او د صدارت مرستیال، عبدالقدیر د کورنیو چارو وزیر او د خپلې کورنۍ له یو شمېر غړو سره په ارګ کې ووژل شول. عبدالقدیر له ارګ نه د تېښتې په وخت سخت ټپي شو او وروسته بیا د اردو په څلور سوه

بستریز روغتون کې و مړ. غلام حیدر رسولي چې ځان یې د قرغې فرقې ته رسولی ؤ ترڅو د هغوی په مرسته ارګ له محاصرې څخه خلاص کړي خو هېڅ کار یې له لاسه پوره نشو، که څه هم د فرقې قوماندان د دولت له پلویانو څخه ؤ خو د کوچنیو قطعاتو قوماندانان له انقلابیانو سره یوځای شوي وو. رسولي چې ولیدل د فرقې د قوماندان له لاسه پوره نه ده نو د ځان د ژغورنې او تېښتې په فکر کې شو. د جیپ موټر په واسطه یې له فرعي لارو څخه د دارالامان مخه ونیوله، او په ډېره ناچارۍ سره یې د ماښام په تروږمۍ کې په دارالامان کې د خپل دهقان کور ته پناه وړله. دهقان چې د راډیو د څپو له لارې یې د محمد داؤد د دولت د نسکورېدو، د داؤد او د هغه د ورور محمد نعیم د وژل کېدو خبر اوریدلی ؤ، په ښکاره دفاع وزیر ته په خپل کور کې پناه ورکوي او په پټه خپل زوی د کودتا کوونکو نږدې پوستې ته استوي ترڅو له موضوع څخه راپور ورکړي. هماغه وه چې ددفاع وزیر د خپل دهقان په کور کې ژوندی نیول کېږي او لکه د جنرال محمد طاهر او نورو په شان وژل کېږي.

د جمعې د ورځې په ماښام د راډیو افغانستان د څپو له لارې د پوځي انقلابي شورا تاریخي فرمان په لاندې ډول نشر ته سپارل کېږي:

«د افغانستان د وطنپالو افسرانو او سرتېرو انقلابي پاڅون د هیواد د خلق په اراده د ۱۳۵۷ کال د غوایي د میاشتې په ۷ مه نېټه ترسره شو. دا پاڅون چې د افغانستان د ملي او دیموکراتیک انقلاب پیلامه شمېرل کېږي، له ۲٤ ساعتونو څخه په کم وخت کې یې د محمد داؤد مستبد رژیم رانسکور کړ او په افغانستان کې یې د پوځي انقلابي شورا په لاس د یوه ملي او دیموکراتیک نظام بنسټ کېښود. ددې لپاره چې د ثور انقلاب خپلې درندې، دیموکراتیکې او ملي دندې په خلاقه، هر اړخیزه او اغېزمن ډول سرته ورسوي، پوځي انقلابي شورا د دولت ټول چارواکي ځواک د افغانستان دموکراتیک جمهوري انقلابي شورا ته منتقل کړ او په خپله په هغې کې مدغم شوه. د پوځي انقلابي شورا د تصویب سره سم د دیموکراتیکو او ملي دندو ترسره کول د افغانستان د دیموکراتیک جمهوریت په انقلابي شورا پورې اړه نیسي.»

همدا رنګه د ۱۳۵۷ د ثور په ۱۰ مه چې د ۱۹۷۸ د اپریل له ۳۱ مې نېټې سره یې سمون درلود د افغانستان د دیموکراتیک جمهوري دولت اوله ګڼه فرمان د راډیو د څپو له لارې په لاندې ډول خپور شو:

لومړی: د د. خ. ا. انقلابي شورا په خپله لومړنۍ غونډه کې د افغانستان ستر ملي او انقلابي شخصیت نور محمد تره کی د د. خ. ا. د انقلابي شورا د رئیس په توګه په عین حال کې د حکومت رئیس یعنی «صدراعظم» هم دی وټاکه.

دوهم: د د. خ. ا. انقلابي شورا د هیواد تر ټولو لوړ دولتي ځواک په توګه په خپله لومړنۍ تاریخي غونډه کې د ستر تاریخي بدلون د نقطې په عنوان د افغانستان د خلق آزادي بخښونکی نهضت په سرنوشت کې د رایو په اتفاق تصویب کړ:

۱- د ۱۳۵۷ کال د غوایي د میاشتې له ۱۰ مې نېټې وروسته افغانستان، د افغانستان د دیموکراتیک جمهوري دولت د سیاسي نظام درلودونکی دي.

۲- د د. خ. ا. انقلابي شورا لخوا حکومت د هیواد د لوړې اجرایيه قوې په توګه انتخاب او د د. خ. ا. حکومت په نوم یادېږي، حکومت د د. خ. ا. انقلابي شورا په وړاندې مسئولیت لري.

د د. خ. ا. انقلابي شورا د رایو په اتفاق تصویب کړه چې تر بل اعلانه پورې به په ټول هیواد کې پوځي مقررات نافذ او پرځای وي. دا فرمان په انیس ورځپاڼې د ۱۳۵۷ کال د ثور د میاشتې د ۱۳ مې نېټې په لومړۍ ګڼه، پرله پسې ۱٤٥۲ ګڼه کې چاپ شوی ؤ.

د انقلابي پوځي شورا د تاریخي فرمان او د افغانستان د دیموکراتیک جمهوري دولت د لومړۍ ګڼې فرمان په اساس دیموکراتیک جمهوري دولت جوړ شو.

د محمد داؤد دولت نسکور شوی ؤ، په ښار کې ډزې خاموشه شوی وې، ټانکونو او زغره وال موټرونو په څلور لارو او حساسو ځایونو کې ځای نیولی ؤ، هټۍ او مارکیټونه خلاص شوی وو، اوضاع عادي حالت ته راګرځېدلی وه، خلک په جادو او لارو کې ګرځېدل او په خپلو ورځنیو چارو یې لاس پورې کړی ؤ. د جمعې د

ورځې په شپه ۹/۸ د ثور د راډیو له لارې نوی حکومت اعلان شو، ترڅو د دولت ټولې اداري، وزارتونه، تعلیمي مؤسسې، ښوونځي، پوهنتون، بانکونه، شرکتونه او ټول مؤسسات لکه د پخوا په شان په ټاکلو وختونو کې خپلو کارونو ته دوام ورکړي، ټول مامورین، کارکوونکي، اجیران، ښوونکي، نارینه او ښځینه کارکوونکي، محصلین او محصلانې خپلو ورځنیو عادي چارو ته دوام ورکړي او خپلو اړوندو ادارو ته حاضر شي.

## د ۱۳۵۷ د ثور ۹ مه د شنبې ورځ:

ما هم د راډیو د اعلان تر مخه لکه د پخوا په څیر د ګهیځ تر چای څښلو او ږیره خریلو وروسته خپل یونیفورم په تن کړ، د جیپ موټر لکه د پخوا په شان په ټاکلي وخت کور ته راغی او دفتر ته روان شوم. د لارې په اوږدو کې ځوانې او هلکان زده کوونکي، نارینه او ښځینه مامورین او کارکوونکي لیدل کېدل چې خپلو دندو ته روان وو. په جادو او لارو کې لاروي تر ستر ګو کېدل، دوکانونه او بازارونه لکه د پخوا په شان بېرته وو. بالکل عادي وضعه راستنه شوې وه، په څلور لارو او حساسو ځایونو کې ټانکونه او مخابره لرونکي موټرونه ځای پر ځای وو.

د پخوا په شان د حاضرۍ په وخت دفتر ته ورسېدم، ټول همکار مامورین وظیفو ته حاضر شوي وو، ما ته راغلل او د ثور د ۷ مې د بریالیتوب مبارکي یې راته وویله، له دې کبله چې ځینو همکارو مامورینو د ثور د اوومې ورځې په پوځي فعالیتونو کې زه لیدلی وم، د هرچا په تندي کې د پوښتنې نښې ښکاره کېدې چې باید په تفصیل سره کیسه ورته تېره کړم. له دې امله چې فرصت مې نه درلود، ځکه د کابل ولایت نوی قوماندان جګتورن خان محی الدین «خلقي» ته چې نوی وظیفه یې اشغال کړې وه ورشم او یو شمېر همکاران مبارکۍ ته وروړلم، له خپلو همکارانو سره مې ژمنه وکړه چې په یوه مناسب وخت کې به د ثور د اوومې د پوځي فعالیتونو په اړه چې څه ډول د کورنیو چارو وزارت ونیول شو او زه څنګه له انقلابي ځواکونو سره یو ځای شوم او څنګه د د. خ. ا. ګوند د مشرانو د خلاصون لپاره د کابل ولایت

ته راغلم او د کابل د امنیه قوماندانۍ مقاومت مې مات کړ، نظارتخانې ته ننوتم، او په پای کې له کومې لارې او څه ډول د افغانستان راډیو ته لاړم او د پاڅون د ورځې دلسې تور جریانونه په تفصیل سره هغوی ته وایم.

له څو تنو همکارانو سره د امنیې قوماندان دفتر ته ورغلم. د امنیې قوماندان او د هغه د همکارانو گروپ او ملگرو هریو امیر محمد حسین خیل، تورن محمد نبی نایب خیل، تورن محمد نظیم، تورن احمدشاه، خورد ضابط عبدالحکیم کتوازی او یو ډېر شمېر نورو افسرانو چې نومونه یې رانه هېر شویدی د ځان او همکارانو له ورپېژندلو وروسته هغوی ته د ثور د انقلاب او د نویو دندو مبارکي وویله.

د پولیسو اداري ټولی ببرته وې خو د دفتر عادي چارې په ټپه درېدلی وې، د پخوا په برعکس د امنیه قوماندانۍ په انگړ کې ډلې ډلې د اردو افسران د قوماندان مبارکۍ ته راتلل او د پولیسو په ټولو ادارو او دفترونو به گرځېدل او پوښتنې به یې کولې چې فلانۍ څانگه څه دنده لري؟ کومې کومې څانگې او قطعات موټر لري؟ د هرې ادارې او شعبې او یا جنایي څانگې موټر او وسیله به چې تر سترگو کېده پر ته له کومې پوښتنې به په کې سپرېدل او په بازار کې به یې گرځول، د پولیسو افسرانو دا مجال نه درلود چې ممانعت وکړي.

د اردو او پولیسو افسرانو ترمنځ له پخوا څخه یو ډول ذهني بدبینۍ شتون درلود. د پولیسو مسلکي افسرانو چه په ښارونو کې په پرگنو کې له خلکو سره اړیکې درلودلې، اکثره د ټیټو او متوسطو رتبو د پولیسو افسران د خپلو مسلکي دندو د ترسره کولو لپاره په ښار کې په موټر کې گرځېدل، په داسې حال کې چې د ټیټو او متوسطو رتبو د اردو افسرانو په قشلو کې دنده ترسره کوله او د نورو دندو د ترسره کولو لپاره به بسونو او یا ترپال لرونکو لاریو کې گرځېدل. د پولیسو له افسرانو سره یې یو ډول کینه او بدبینی لرله چې ولې هغوی ته هم لکه د پولیسو د افسرانو په شان موټر نه ورکول کېږي. اوس چې فرصت په لاس ورغلی ؤ او د اردو ټول افسران وسله وال شوي وو، بې له دې چې د پولیسو افسرانو اساسي او مسلکي

دندې په پام کې ونيسي د پوليسو نقليه وسايل يې د خپل چکر او تفريح لپاره هرې خواته ځغلول او هڅه يې کوله چې مهمې چوکۍ ونيسي. په توقيف ځای او نظارتخانه کې تاکل شوي مقررات نه رعايت کېدل، هرچا په هر وخت کولای شول په توقيف او نظارتخانه کې له خپلو خپلوانو او دوستانو سره ملاقات وکړي، او ان چې کولای شي د څارنوالۍ او يا محکمې له اجازې نه پرته بندي له توقيف يا نظارتخانې څخه رااوباسي. تردې چې ځينې فاحشې ښځې او د اخلاقي جرمونو حرفوي مجرمين د اردو د افسرانو په واسطه د ځو ورځو لپاره له توقيف او بنديخانې څخه ايستل کېدل. له دې جملې نه يوه ښکلې هنرمنده سندرغاړه ښځه چې ډېر خوږ آواز يې درلود چې د کوم اخلاقي جرم په ترڅ کې بندۍ شوې وه هره شپه به د امنيې قوماندان او د هغه ورسره ګروپ له بنديخانې څخه راايستله. د دغې سندرغاړې له نوم يادولو څخه د انساني ملحوظاتو په وجه ډډه کوم. په پای کې د سندرغاړې دوسيه حفظ او له بند څخه خوشې کړای شوه، چې وروسته له څه مودې بيا دغه سندر غاړې له يو سندرغاړي سره واده کوي او اوس له مېړه او اولادونو سره خارج ته مهاجره شوې ده.

د د. خ. ا. ګوند ملکي غړي او د وسله وال پوځ افسران چې هر وزارت او ادارې ته ننوتي وو، له پخوانيو مامورينو سره يې شکمن چلن کاوه، چې له همدې کبله د ورځنيو عادي چارو بهير تغيير خوړلی ؤ او په ټپه درېدلی وې. دا حالت زما لپاره او هم هغو مسلکي افسرانو ته چې د کابل په امنيه قوماندانۍ کې د پوليسو د ادارو مسئوليت ورله غاړی ؤ د حيرانتيا وړ ؤ. زه چې له يوې خوا د پوليسو مسلکي او د پخوانۍ رژيم د سابقه لرونکو افسرانو له جملې څخه وم، او له بلې خوا د ثور په اوومه له انقلابيانو سره يوځای شوی وم او په پوځي فعاليتونو کې مې رول لوبولی ؤ، تېولو له ما څخه پوښتنه کوله چې دا بې نظمي د څه لپاره ده؟ او دا ګډوډۍ به ترڅو پورې دوام ولري؟ ما پرته له دې چې هغوی ته د صبر او زغم توصيه وکړم بله چاره نه لرله.

## د کورنیو چارو له وزیر نوراحمد نور سره کتنه او د رهبرۍ په کچه داخلي تضادونه:

عبدالصمد ازهر چې د پرچم ډلې غړی او د پولیسو د مخکښو افسرانو له جملې څخه ؤ، راته ټیلفون کړی ؤ چې د کورنیو چارو په وزارت کې وزیر او د ژاندارم او پولیسو عمومي قوماندان څنګ ته ورشم او له هغوی سره پېژندګلوي وکړم.

د پرچم ډلې نوراحمد نور د کورنیو چارو د وزیر په توګه او د خلق ډلې سید داؤد تړون د ژاندارم او پولیسو د نوی عمومي قوماندان په توګه ټاکل شوی وو.

ازهر د وزارت د سلاکار په توګه کار کاوه. د ثور د اوومې ورځې په اړه زما د فعالیتونو په هکله یې د کورنیو چارو وزیر ته له مخکې نه حال تېر کړی ؤ. نور چې د پرچم ډلې د تشکیلاتو په برخه کې کار کاوه، زه یې په نوم او شهرت سره پېژندم، خو مخامخ یې نه وم لیدلی. له ازهر سره یوځای د وزیر دفتر ته ورغلم، ورته وروپېژندل شوم، وزیر چې زما له فعالیتونو څخه لا له وړاندې نه خبر ؤ، له خپله ځایه راپاځېد او په ورین تندي او په مینه سره یې نوازش کړم او زما د پوځي فعالیتونو له کبله یې تحسین او شاباش راباندې ووایه. له خبرو او څرګندونو څخه خوښ او راضي ښکارېده، له خپلې چوکۍ راپاځېد او د چای څښلو مېز ته له ما او ازهر سره کښېناست. چای او کلچې مو وخوړلې، زما د فعالیت او د خپلو نورو ملګرو له فعالیتونو څخه یې په وار وار ښه یادونه کوله. د وزیر شفقت زما له توقع څخه زیات ؤ، زه دغه مهال د وزیر د خبرو په ارزښت نپوهېدم چې د یو ناچیز فعالیت په وړاندې څومره خوښي ښکاره کوي او ویاړ ورباندې کوي.

ما د حزب په دننه کې د مشرتابه په کچه له دومره ژورو اختلافاتو څخه خبرتیا نه لرله. په ښکاره حزب له انشعاب نه وروسته اتحاد کړی ؤ، ما داسې انګېرله چې ټولې داخلي ستونزې حل شوی دي، خو د رهبرۍ په کچه له دومره ژورو تضادونو څخه چې د ځان غوښتنې او واک غوښتنې په بنسټ وو خبر نه وم، چې تر اوسه یې هم په ریښتیا او اخلاص سره وحدت نه دی کړی. هریوه بل ته کمین نیولی ؤ، د ثور د پاڅون په پېښه کې چې د امین په مستقیمه قومانده ترسره شوی ؤ خلقیان برلاسي

وژونکو » شعارونه اورېدل کېدل.

په پلان کې داسې وړاندوینه شوې وه، له دې امله چې خیبر د یو کمونست شخص په توګه شهرت درلود، چې که د اخوان المسلمین د سیاسي تحریک او یا د حکومت د مداخلې له امله د پل خشتي د جامع جوماټ امام د جنازې له ادا کولو نه انکار وکړي نو د احمدجان سمنګاني په نوم یو ملا چې د خیبر باجه او د سلیمان لایق اوښې ؤ هم حاضر شوی ؤ چې د جنازې لمونځ ادا کړي.

د جنازې د مراسمو د مارش د سر په لیکه کې د د. خ. ا. ګوند د مرکزي کمیټې او د سیاسي بیورو غړي ولاړ وو او وروسته په ترتیب سره د ولایتي کمیټو، ښاري کمیټو او د ناحیو د کمیټو غړو په لاریون کې په منظمو کتارونو کې حرکت کاوه. د طرحه شوي پلان سره سم جنازه د یو ستر مارش په بهیر کې چې فکر نه کوم د کابل ښار به تر دې دمخه داسې جنازه او لاریون لیدلی وي، له مکروریان، پل خشتي جوماټ او له دغه ځایه د جنازې له ادا کولو وروسته د شهدای صالحینو هدیرې ته په ډېر شور او زوږ او د شعارونو په ورکولو سره یووړل شوه.

## په هدیره کې ستره غونډه:

جنازه د یو اوږد واټن له وهلو وروسته د شهدای صالحین لرغونی هدیرې ته چې د کابل په جنوب ختیځه لمنه کې پرته ده ورسېده. زه هم چې په دغه وخت کې د کابل د امنیه قوماندانۍ افسر وم، د امنیې د قوماندان میرګل خان لخوا دنده راسپارل شوې وه چې په ملکي لباس کې د جنازې او تدفین په مراسمو کې ګډون وکړم او ګزارش وړاندې کړم. لیدل مې چې یو زیات شمېر د پولیسو افسرانو، لوړ پوړو ملکي مامورینو، د کابل پوهنتون استادانو د جنازې په مراسمو کې ګډون درلود. ما فکر کاوه چې دوی هم لکه زما په شان دنده لري، یا به د ګوند غړي وي، او یا به د خیبر دوستان وي چې له کوره تر هدیرې پورې یې په مراسمو کې ګډون کړی دی.

له دود سره سم د هدیرې په یوه څنډه کې په یو نسبتاً پراخ میدان کې قبر له مخکې نه کیندل شوی ؤ. د قبر ترڅنګ په یو هوار لوړ ځای کې د وینا لپاره

وو او پرچمیانو ته په برابره ونډه قایل نه وو. له زندان څخه مشرانو ته د نجات ورکولو په لاره کې زما فعالیت خلقیانو ته بې ارزښت او نالیدلی ؤ او پرچمیانو ته یې د پاځون د قوماندې تر صادرولو وروسته ډېر زیات ارزښت درلود. د وزیر لخوا زما قدرونه او نوازش زما له هیلې څخه ډېر زیات ؤ. ما فکر کاوه چې واحد گوند او د یوې اساسنامې پیروان دي، ځکه ان چې د انشعاب پر مهال یې هم واحده اساسنامه درلودله، له وحدت وروسته به ټول مسایل حل شوي وي او باید حل شوي هم وای. هغه فشار چې د محمد داؤد دولت په دواړو ډلو راوړی ؤ یو شان ؤ او حزب هم د همدې فشار له امله وحدت ته اړ کړای شوی ؤ، خو د دواړو ډلو ځان غوښتونکو او قدرت غوښتونکو مشرانو په ریښتین ډول یو نه وو چې پایلې یې وروسته راڅرګندې شوې او د همدې ځواک غوښتنې له امله وروسته بیا یو په بل پسې له منځه لاړل. خلقیانو به په پرچمیانو بریدونه کول او کله به پرچمیانو د دروغجن وحدت د پردې ترشا په خلقیانو تیری او برید کاوه، چې په ټولنیزه توګه له دننه څخه کمزوري او ډډ شوي وو.

لکه څنګه یې چې د واحد حزب، او له سره د یو موټي کېدو ادعا کوله نه وو بلکې د مشرتابه په کچه په گوند کې ډلې او فرکسیونونه موجود وو، چې لکه د وېنو (موریانه) له دننه څخه خوړل کېدل تر دې چې نیست او نابود شول.

د کورنیو چارو وزیر د ثور د اوومې ورځې د فعالیتونو په لړ کې په لومړۍ لیکه کې د جګړن عمر د ټانګ د مخکښۍ او د هغه د شهادت، د جګړن محمد رفیع او نورو له فعالیتونو څخه په ویاړ سره یادونه کوله، زما فعالیت یې هم د پرچم ډلې له لاسته راوړنو څخه شمېرل، چې ګڼې دواړه ډلې د محمد داؤد د رژیم په نسکورولو کې په پوځي او انقلابي فعالیتونو کې برابره ونډه لري. ښاغلی نور خبرې په داسې جملو کې پوښلې وې چې په آسانه سره چا د داخلي اختلاف احساس نشو کولی، خو د خلق ډلې مشرانو او چارواکو په ځرګنده سره د خلقیانو برلاسی ښودله او ځانونه یې پرته د چا له ګډون څخه د ثور د انقلاب وارثان شمېرل.

له نور سره له کتنې او پېژندګلوۍ وروسته د ازهر په ملګرتیا د ټرون دفتر ته

ورغلم. د ازهر لخوا له پېژندګلوۍ وروسته مې په لنډه ډول ورته د پنجشنبې د ثور د اوومې نېټې کړنې او فعالیتونه چې ما په کې ونډه درلوده بیان او تشریح کړل. د هغه له سلوک او چلن څخه داسې برېښېده چې د ازهر خبرې یې چندان خوښې شوې نه وې. د بریالیتوب لومړنی ورځې وې، زما د حال په اړه یې پوښتنې وکړې او ما ته یې د کابل د امنیې له قوماندان سره په صمیمانه همکارۍ کولو توصیه او لارښوونه وکړه او رخصت شوو.

## د کابل نوې والي او د «خلقي» خان محي الدین خپلواکه قوماندانې:

د شنبې په ورځ د ثور په ۹ مه د راډیو د اعلان په اساس ټول مامورین اړوندو ادارو ته حاضر شوي ؤ. د زراعت پخوانی وزیر عبدالحکیم چې د غه مهال د کابل والي ؤ هم خپلې دندې ته حاضر شوی ؤ. د امنیې قوماندان میرګل چې د پنجشنبې په ورځ چې د ټانکونو د ورانډې تګ او تعرض له کبله یې ولایت نه تېښته کړې وه خپلې دندې ته حاضر نشو.

د امنیې قوماندان خلقي خان محي الدین ته له کومې مرجع نه ټیلفوني هدایت وشو چې د ادارو آمران او مامورین د ولایت صالون ته د نوي والي د پېژندګلوۍ لپاره راجمع کړي. ډګروال عبدالقادر نوی والي سالم «مسعودي» مامورینو ته ورو پېژندلو او له پخواني والي عبدالحکیم نه یې هیله وکړه چې یو څو ورځې د والي د سلاکار په توګه همکاري وکړي. سالم مسعودي د امین د څانګړو ملګرو له جملې څخه ؤ چې د ښوونې او روزنې په وزارت او نورو تعلیمي ادارو کې یې یو ځای کار کاوه، چې په دې ترتیب سره د کابل ولایت ټول مهم پوستونه نامسلکي او بې تجربې اشخاصو ته وسپارل شول.

د امنیې قوماندان، د کابل والي، د دار المعلمین مدیر او د [illegible] ادارو چارواکي ټول غیر مسلکي کسان وو. اداري څانګې هم د هغوی له دوستانو او خپلوانو څخه ډکې شوې وې. د هیواد د پلازمینې کابل ښار اداره له دوه میلیونو

وګړو سره نامسلکي او بې تجربې او احساساتي کسانو لاس ته وسپارل شوه.

د امنيې قوماندان همکاري ګروپ په بې پولې اختياراتو سره د کابل په له پښتنو ډک ښار کې د خلکو په مال، حال او ناموس باندې څه يې چې زړه غوښتل ترسره کړل. دا طبيعي چاره ده چې په سترو او ګڼ ميشته ښارونو کې حرفوي مجرمان، قمارخانې، فاحشه خانې، چرس خانې، شرابخانې، شراب پلورونکي او شراب اخيستونکي، جيب وهونکي او داسې نور جنايتکاران لږ يا ډېر شتون لري. د پښتنو ګراف د پوليسو له اغېزمن فعاليت سره تړاو لري، په هرځومره کچه چې څارنه، له جرمونو سره مجادله او مخنيوي موجود وي، په همغه کچه د پښتنو او جرمونو کچه ټيټه وي، خو ددې برعکس کله چې پوليس بې اعتنا شي، نو د مجرمانو لپاره د جنايي فعاليتونو زمينه برابرېږي او د پښتنو کچه پورته ځي. کله چې د پوليسي ادارو چارواکي د حرفوي مجرمانو همکار او په جرم کې شامل شي نو څرنګه به د پښتنو کچه کمه شي؟

د امنيه قومانداني په ادارو کې ورو ورو د قانونيت، وړتيا او د تناسب اصل خپل مفهوم له لاسه ورکړی ؤ. په خپله قوماندان هم په ډېر کم وخت کې دومره په عياشۍ کې ډوب شو چې حتی د کار په رسمي وخت کې د پوليسو دفترونو ته د بېلابېلو حرفوي مجرمانو تګ راتګ شروع شوی ؤ. د دفترونو ټيلفونونه په سپارښتونو او راکړې ورکړې مصروف وو. په ټولنه کې د قضاوت بهترينه مرجع خلک دي. خلکو ورو ورو په پوليسو باندې خپل اعتبار بايلود او د پوليسو شعار چې «پوليس د خلکو په خدمت کې» ؤ په «څارندوی د خلکو په ذلت» بدل شوی ؤ.

يوه ورځ د امنيې قوماندان په دفتر کې ناست وم د چهاردهی د ولسوالۍ د څارندوی قوماندان جګتورن سيف الله د کابل ولايت قوماندان ته راغی، راپور يې ورکړ چې تېره شپه يو بلار له دوه زلمو زامنو سره د يو فولکس واګون موټر په سپرلۍ د شپې د ګرځېدو د بنديز په وخت کې د ګزمې په واسطه ولسوالۍ ته راوستل شوي وو، که څه هم وسله او يا د شک وړ کوم اسناد ورسره نه وو، هغوی له خپل موټر سره په ولسوالۍ کې ساتل شويدي، په دې اړه هدايت غواړم.

ـ ـ ـ ې راپور په اورېدو حیـران شـوم، انتظار مـې ویوست چې «خلقي» څـه لاربنودنه کوي. د ولایت قوماندان په یو ډول بې پروایۍ سره وویل: «دا خلک چې یوه دوه شپې د نظارتخانې مزه وڅکي نو هله به د شپې د گرځبندۍ د بندیز په اهمیت پوه شي.»

ما بې اختیاره له سیف الله نه وپوښتل چې: «موټر له کومه ځایه چېرته تللو؟ د شپې په څو بجو د گزمې لخوا نیول شوی ؤ؟ د موټر او کسانو د تالاشۍ په مهال څه شی لاس ته درغلی دي؟»

ویې ویل: «پلار او زامن په دارالامان کې د یوه خپلوان په کور کې مېلمانه وو، کله چې خپل کور ته تلل، د شپې په لسو بجو د گزمې لخوا نیول شوي او ولسوالۍ ته راوستل شوي دي، په تالاشۍ کې هېڅ شی نه دی موندلی.» د ولایت له قوماندان څخه مې اجازه وغوښته او د درناوي نه په ډکه لهجه مې ورته وویل، لازمه نه وه چې له تالاشۍ نه وروسته یې یوه شپه او یوه ورځ بندیان کړي، د اشخاصو او موټر د هویت له تثبیت نه پس باید د یو تن پولیس په واسطه باید خپل کور ته سپارل شوي وای او تېنگار پرې شوی وای چې تردې وروسته د شپې گرځبندیز په جدي توگه رعایت کړي.

اصلاً مې ورته د قانونیت، تناسب لرل او وړتیا په اړه د پولیسو کړنې یوڅه روښانه کړې خو د علاقې وړ ورته ونه گرځېدل.

دا پېښه د بېلگې په ډول ذکر شوه چې له دې څخه د خپلواک گروپ تولې کړنې اټکل کولای شو. د بچه سقاو حبیب الله د کارکوونکو په ډله کې او د ځینو بې عقله حزبیانو په منځ کې یوازې همدومره توپیر شتون درلود چې هغوی کلبوال او بې سواده وو او دا ښاري او باسواده وو. هغوی له قانون نه خبرتیا نه لرله او دوی د قانون په وړاندې بې تفاوته وو، هغوی په اړو دوړو او جگړو کې خپل آسونه خاربه کړل، پیسې او شتمنې یې پیدا کړه، او دوی د انقلاب په نوم هرڅه یې چې وغوښتل ترسره کړل.

د ولایت د امنیې قوماندان چې د نظم او عامه امنیت ساتلو لومړۍ درجه

مسئول ؤ، دغه د خلکو د مال، ځان او ناموس د امنیت ساتنې لومړی درجه مسئول په خپله د نفساني خواهشاتو او عیاشۍ په ډنډ کې داسې ډوب شوی ؤ چې یوه شپه د نشې په حالت کې په قلعه فتح الله خان کې د ماری په نوم د یوې فاحشې کور ته ورغی، له هغې سره په عیاشۍ پیل کوي، د وخت د استخباراتو دستگاه دغه موضوع کشفوي، قوماندان په نوموړی کور کې په داسې حال کې چې لوڅ لغړ د نشې په حالت کې له فاحشې سره په فحاشۍ لگیا دي نیول کیږي. د وخت رژیم د خلقي خان محی الدین د دغه جرم د پټولو لپاره هغه له دندې گوښه کوي او د احتیاط په نوم دوه اونۍ په کور کې کښیني، او له پنځلس ورځو وروسته یې د فراه د والي په توگه مقرر وي، له دې امله چې «خلقي» له یوې ځانگړې ډلې سره تړلی ؤ، نو د فرکسیون او ډلې گټې د هیواد تر گټو پورته وې. په همدې اساس وه چې د هیواد په گوټ گوټ کې د فرکسیوني گټو د ساتلو په موخه د هیواد عالی گټې، د خلکو امنیت، سوکالي او نیکبختي او د ټولنې نیکمرغي د ناوړو پیښو ښکار شوی وه. په پایله کې خلکو له رژیم څخه واټن پیدا کاوه، د مخالفینو تبلیغات کاري او اغېزمن واقع کېدل، تردې چې ورو ورو په ټول هیواد کې د رژیم پر ضد د مقاومت ډلې جوړې شوې او د سوسیالیستي بلاک مخالفینو په بشپړ ډول له دې چلن څخه گټه پورته کړه او میلیوني پرگنې یې خپل ځان ته راکاږلې.

## د بهرنیو چارو له وزیر حفیظ الله امین سره لومړنۍ کتنه:

زه د ثور په لسمه د کورنیو چارو د وزارت لخوا د کابل د امنیت د آمر په توگه مقرر شوی وم. دا چوکۍ د خلقي ځان محی الدین د گروپ یو غړي چې جگړن امیر محمد حسین خیل نومېده ځان ته غوره کړې وه او د امنیت والگا موټر یې په خپل واک کې راوستی ؤ. زما په ټاکل کېدو چې د کورنیو چارو د وزارت لخوا ترسره شوی وه د ولایت د امنیې قوماندان موافقه نه لرله، خو په ښکاره یې کوم مخالفت نه کاوه. زه له یوې حیرانوونکې فضا سره مخ وم. د کورنیو چارو وزارت د دې لپاره چې د ولایت قوماندان یو غیر مسلکی او بې تجربې سړی دی، د هغه په څنگ کې

باید یو مسلکي او تجربه لرونکی شخص شتون ولري ترڅو کومه وظیفوي تشه رامنځ ته نشي ، له بلې خوا د امنيې قوماندان او د هغه همکار گروپ ټولې پوليسي چوکۍ په خپل منځ کې سره ویشلې وې او نه یې غوښتل چې بل څوک د هغوی په منځ کې ديوال شي ، په تصادفي ډول زه د هغوی د راز د یو مخل یا ضرري په توگه گرځېدلی وم ، زه نه د اردو افسر وم او نه خلقي بلکې د یوې ډلې او دستگاه په اداره کې د شپږم کلک (گوته) ناخوښه عنصر په توگه مقرر شوی وم.

د کابل نوی والی سالم مسعودی راته وویل چې سمدستي د بهرنیو چارو وزارت د امین دفتر ته ورشم ، د موټر خبره مې ورته وکړه ، خپل ډریور ته یې لارښوونه وکړه ترڅو ما د بهرنیو چارو وزارت ته ورسوي. د بهرنیو چارو وزارت لکه د یوې پوځي قرارگاه په ډول کلک امنيتي تدابیر نیولی وو. د ننوتو له دروازې څخه د بهرنیو چارو د وزیر تر دفتره څو ځله تالاشي شوم ، په دوهم منزل کې یې د مراجعینو د ناستې لپاره چوکۍ ایښې وې ، نږدې شلو تنو له امین سره د کتنې انتظار کاوه. له هغې جملې څخه یو هم د ښوونې او روزنې د وزارت معین ښاغلی فاضل خان چې د بکلوریا په دوره کې زمونږ د لیسې مدیر او زمونږ د ټولگی د یو مضمون استاد ؤ او ما ورسره پېژندگلوۍ لرله په منتظرینو کې ؤ. ما هم د معمول سره سم خپل نوم او شهرت ولیکه او د مسئول تن په لاس کې مې ورکړ. لږ شیبه وروسته امین له یو مېلمه سره چې د ډیپلومات بڼه یې لرله د مشایعت او خدای پامانۍ په ډول دهلېز ته راووت او له مېلمه سره یې خدای پاماني وکړه. د انتظار کوونکو خوا ته راغی ، زه یې چې ولیدم ، له انتظار کوونکو څخه یې بخښنه وغوښته او ویې ویل چې که بې نوبتي کیږي هم دا افسر ما رابللی دی ، ستاسو په اجازه یو څو دقیقې ورسره گورم. زه یې له لاسه ونیوم ، دفتر ته ننوتو او د گردې میز شاته د چای څښلو لپاره کښیناستو. یو گیلاس چای راغله او د سگرټو لطف یې وکړ ، له تندي یې داسې بریښېده چې امین ډېر خوشحاله دی او په ځان ویاړ کوي. ما ته یې په خندا وویل: «ودې لیدل چې زمونږ گوند له یوې شپې او ورځې څخه په کم وخت کې د داودخان مستبد رژیم نسکور کړ او هیواد ته یې د تل لپاره د محمدزیو د کورنۍ له

ظلم او استبداد څخه نجات ورکړ؟» د تایید په ډول مې ورته وویل: «هو، په خپلو سترګو مې ولیدل چې دولت ډېر ژر سقوط وکړ.» په موسکا يې وویل: «په یاد دې دي چې زما د نیولو لپاره دې په نیمه شپه کې د پولیسو په ځواک زما کور محاصره کړ او په تالاشۍ دې پیل وکړ؟» ومې ویل: «هو، دا هرڅه مې په یاد دي.» ويې ویل: په دغه شپه ستا د ځوان مردانه چلن څخه ډېر مشکور یم، دوه ملګري انجنیر ظریف او فقیر محمد چې د دندو ترسره کولو لپاره ماته راغلي وو او هغوی مې تاته د پولي تخنیک محصلین او زما د زوی عبدالرحمن هم ټولګي درو پېژندل تاسو زما خبره ومنله او هغه مو خوشې کړل، هغوی ډېر مهم او ګټور واقع شول ځکه هغوی دواړه په اردو کې زما د ملګرو ارتباطي غړي وو.» امین چې زما په لیدلو سره د تالاشۍ د شپې ټولې خاطرې په ځانګړې توګه زما مرستې چې ډېره ګټه یې ورته رسولې وه یوه یوه يې په ګوته کړه او زما څخه يې بیا بیا مننه کوله. خپلو خبرو ته يې دوام ورکړ او ويې ویل: «کله چې مې کور محاصره شو او تاسو د دروازې زنګ کېمانده د انقلاب قومانده نیمګړې پاتې وه. کله چې زما زوی عبدالرحمن د پولیسو د راتګ خبر راکړ نو مجبوراً ټولې پاڼې او کاغذونه مې نیمګړي راټول کړل او ښځې مې په خپل لستوڼي کې پټ کړل، او له دوه تنو انجنیر ظریف او فقیر محمد سره تاته دروازې ته راغلم، د تالاشۍ په مهال ډېر اندېښمن وم، کاغذونه چې ډېر محرم دي چې له مېرمن سره مې وو هسې نه چې افشا شي او تاسو ته په لاس درشي. په یاد دې دي کله چې د زنانه د کوټې د تالاشۍ نوبت رارسېد، په ټینګار مې درنه هیله وکړه چې په کوټه کې زما پېغلې لوڼه او خواښې مې چې سپین سرې ښځه ده او ناروغه ده ویده دي، که د عملیاتي ډلې ټول غړي اتاق ته ننوځي له دې امله چې ستاسو په عملیاتي ډله کې ښځینه پولیس نشته د افغاني کلتور له مخې يو ډول بې عزتي راته ښکاري، تاسو هم زما دا هیله ومنله او د نورو غړو له ننوتو څخه صرف نظر شوې، له ما سره یوځای کوټې ته داخل شوې او په سرسري ډول دې تالاشي واخیسته او په دقیقه توګه دې تالاشي وانه خیسته، تر ټولو مهمه دا چې زما ورور عبدالرحمن هم له خپلې مېرمن سره په همدې کوټه کې ؤ، هغوی دې نالیدلي وګڼل

او که نه نو په اصولي ډول هغه هم نیول کېده. زما وروستني او تر ټولو مهم خواهش چې تاسو ومانه هغه دا ؤ چې په همغه شپه دې د سمت د مامور تر څارنې لاندې زه په خپل کور کې شپې تېرېدو ته پرېښودم، ما له فرصت نه په استفادې سره څرنګه مې چې خوښه وه په همغه شپه کې د انقلاب د قوماندې د صادرولو کار بشپړ کړ، که نه نو اوس به زه هېڅکله د بهرنیو چارو وزیر نه وم، او زمونږ ګوند هېڅکله سیاسي قدرت لاس ته نشو راوړلای، ځکه نو زما په اند تاسو زمونږ په انقلاب کې مهمه او ستره ونډه لرلې ده.» ما ددې خبرو په اورېدو چې په ناخبرۍ کې مې ترسره کړې وې امین ته څرګنده کړه: «ما هر هغه څه چې هاغه شپه کې ترسره کړي دي ستا د ورور عبدالله خان سره د پخوانۍ پېژندګلوۍ او اخلاص له مخې وو، دا چې دا ناڅیز مراعاتونه دومره ګټور تمام شویدي دا ټول ستا د نوښت او اتلولۍ ترمخه وو چې په لږ وخت کې ستر کار ترسره شو، په داسې حال کې چې سبا ته تاسو هم زندان ته راغلئ، خو ستاسو لاربښودنه او دستور دومره منظم او اغېزمن ؤ چې یو یو تطبیق او د عمل جامه یې واغوستله، ستاسو اتلولي یوځل بیا تاسو ته تبریک وایم.»
امین داسې خوښ او تازه ؤ چې بیا یې ما ته د خبرو نوبت را نکړ، خپلو خبرو ته یې دوام ورکړ ویې ویل: «پرون درې تنه بریدمن سید رحیم، بریدمن یوسف سحر او تاسو پخپله چې مونږ ته مو له زندان نه نجات راکړی ؤ، د خلق کور (جمهوري ارګ) ته غوښتل شوي وئ. د انقلابي شورا رئیس تره کی غوښتل له تاسو سره خبرې وکړي، دوه تنه حاضر وو خو تاسو حاضر نه وئ داسې هدایت او پرېکړه وشوه چې یاد شوي درې تنه چې په ستونزمنو شرایطو کې یې په مېړانه رهبران له زندان نه خوشې کړل نو اوس دې زمونږ ساتنه او امنیت هم په غاړه واخلي، په دې اساس پرېکړه وشوه چې سید رحیم به له تره کی سره، سحر به له کارمل سره او ته به له ما سره د یاور او ساتونکی په حیث دنده ترسره کوئ، تاسو مې په همدې اړه راغوښتی یئ.»
ددې پرېکړې په اورېدو په زړه کې اندېښمن شوم، زه له دې دندې سره موافق نه وم. امین هم زیات شمېر ساتونکي او یاوران درلودل، زما له شتون سره یې چندان علاقه نه لرله خو د نزاکت له مخې یې د تره کی پرېکړه ما ته ابلاغ کړې وه. زه په ظاهره

دريم څپرکی:

# په ګوند کې دننه مبارزه او انشعابونه ، د ځمکه والو ، شتمنو ، علماو ، روحانيونو ، د قومونو د مشرانو ، روڼاندو او د پرچم د ډلې د غړو نيول او د نور محمد تره کي وژل

## په حزب کې دننه اختلافونه:

په افغانستان کې د د. خ. ا. ګوند بنسټ د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په سپارښتنه ايښودل شوی و او مشران يې نور محمد تره کي او ببرک کارمل د کمونست ګوند ايجنټان او د کې جي بي (د شوروي اتحاد د کمونست ګوند جاسوسي سازمان) د بېلابېلو چينلونو سره تړاو درلود.

نور محمد تره کي په خټه پښتون ؤ ، يو کليوال او ساده مزاجه سړی ؤ. ببرک کارمل په خټه تاجک، ښاري، د جنرال زوی، ځيرک او پوهېدونکی شخص ؤ. روسانو په لومړي سر کې دغه دواړه ځان خوښوونکي او قدرت غوښتونکي مشران يو د بل پر ضد روزلي وو ، دواړو ته په جلا جلا توګه د لومړيتوب په حق قايل وو. تره کي او کارمل چې په جلا جلا ډول دواړو له روسانو څخه مرستې تر لاسه کولې ، هريوه د د. خ. ا. ګوند په نوم فراکسيوني جلا جلا ډلې او ګروپونه جوړ کړي وو ، چې هر فرکسيون که هغه د وحدت په وخت کې ؤ او که هغه د انشعاب په وخت کې ؤ خو د يوې واحدې اساسنامې په درلودلو سره د د. خ. ا. په نوم يادېده ، خو په حقيقت کې يې د خپلې ځانګړې رهبرۍ پيروي کوله. همدا دننې اختلافات وو چې له جوړېدو له

چوپ پاتې شوم. امین خپلو خبرو ته ادامه ورکړه او ویې ویل: «د کابل امنیه قومانداني هم ډېره مهمه ده غوښتل مې تا د کابل د امنیه قوماندان په حیث وټاکم، خو له دې امله چې خان محی الدین خلقي د دې چوکۍ ډېر هیله من ؤ، عجالتاً مې هغه د قوماندان او ته مې ورسره په څنګ کې د امنیت د آمر په توګه ټاکلی یې، قوماندان د اردو افسر او غیر مسلکي دی، تاسو مسلکي افسر او تجربه لرونکی یاست، تر یوه وخته ورسره باید همکاري وکړې، اوس اختیار لرې هره یوه دنده چې غوره کوئ. » ومې ویل ریښتیا هم د کابل د امنیه قومانداني چارې به په دې انقلابي شرایطو کې ډېرې مهمې وي. » امین هم خوشحاله شو او ویې ویل: «په سمدستي توګه د کابل د امنیت د آمر په حیث دنده اشغال کړئ، زما په وړاندې تاسو د کابل ښار د امنیت مسئول یاست، هر وخت له ما سره په تماس کې اوسه. » او د خدای پاماني په ډول له خپله ځایه راپاڅېد. د امنیت د آمر په توګه چې ما کومې ستونزې د خان محی الدین خلقي له ګروپ سره احساسولې، فرصت په لاس رانغی چې امین ته مې ویلی وای، له ځان سره مې فکر کاوه چې د بهرنیو چارو وزیر به د قوماندان او پوځي پوستونو په ټاکنو کې څه مسئولیت لري. دا پوستونه د ژاندارم او پولیسو د عمومي قوماندانۍ په تشکیلاتو کې دي، باید ګوښه کول او مقررول او د ستونزو حل د کورنیو چارو د وزارت د عمومي قوماندانۍ لخوا ترسره شي، خو په عملي ډول امین د اردو ټولو نظامي پوستونو د ځای پرځای کولو، او د اګسا او پولیسو د واک خاوند ؤ. وروسته بیا څرګنده شوه چې د دیموکراتیک په نوي جمهوري رژیم کې «زیر کاسه نیم کاسه شتون لري». حفیظ الله امین چې د بهرنیو چارو د وزارت په مقام دنده ترسره کوله عملاً د دولتي او حزبي چارو عام و تام اختیارات یې په لاس کې وو.

میکروفون ځای پرځای شوی ؤ او د یو شو موټرونو د باډیو له پاسه شاوخوا ته لوډ سپیکرونه نصب شوي وو. د یوې غونډې او وینا لپاره له وړاندې نه تدابیر او تیاري نیول شوی ؤ. جنازه خاورو ته وسپارل شوه، مولوی احمدجان یوه لنډه شان دعا وکړه او د مشرتابه پلاوی د خبرو لپاره تاکلي ځای ته ورغی.

د جنازې او لاریون په زرگونو گډون کوونکی پرته له کوم شور او زوره دغلته راټول شوي وو. د حکومت لخوا هیڅ مخنیوي نه و شوی، پولیس او امنیتي ځواک شتون نه درلود.

غونډه د نورمحمد تره کي په وینا پیل شوه چې د د. خ. ا. گوند د اعلامیې پښتو متن اعلاماوه. د اعلامیې دري متن د ډاکتر شاه ولی لخوا ولوستل شو. په اعلامیه کې داسې ویل شوي وو: «استاد میر اکبر خیبر د د. خ. ا. گوند له پیاوړو کادرونو څخه و، په رڼا ورځ په عمومي جاده کې څو تنو وسله والو ترهگرو چې په جیب کې سپاره وو په شهادت ورسولو او وتښتېدل. ددې پېښې پړه د دولت په غاړه ده، دا یو سیاسي وژنه ده. د هغې عاملین باید ډېر ژر ونیول شي او د قانون منگولو ته وسپارل شي».

وروسته بیا ببرک کارمل په لوړ غږ او په خاصه له شور او زوږ ډکه لهجه خپله وینا واوروله او ویې ویل:

«د خیبر شهادت د اختناق پنځه کلن سکوت مات کړ.» په لاس سره یې د هغه قبر ته اشاره کوله او ویل یې چې ملگری به دې ډېر ژر ستا غچ واخلي. بیا سلیمان لایق، دستگیر پنجشیري او بارق شفیعي هریوه خپل مرثیه اشعار ولوستل. د غونډې انانسر کریم میثاق ؤ. د مشرتابه په دې پلاوي کې حفیظ الله امین شتون نه درلود بلکې د غونډې د گډون کوونکو په منځ کې د یوې ونې ترڅنگ لیدل کېده. فضل الربي پژواک، خلیل احمد ابوي او ډېر شمېر لوړ پوړی ملکي او نظامي مامورین په دې غونډه کې لیدل کېدل. د غونډې په پای کې اعلان وشو چې فاتحه د دوه ورځو لپاره د شاه دو شمشېره علیه الرحمة په جومات کې اخیستل کیږي.

وخت نه تر ړنګېدو پورې يې هېڅ وخت په رېښتيا او د زړه له تل نه يو تر بله همکاري ونکړه او د يو موټي او واحد حزب په توګه يې عمل ونکړ. لومړنی بېلتون يا انشعاب چې له جوړېدو نه نږدې يو کال وروسته رامنځ ته شو، نو د نور محمد تره کي، صالح محمد زيري، دستګير پنجشېري، ډاکټر شاه ولي، حفيظ الله امين او داسې نورو په مشرۍ ډله د خلق په نوم، او د ببرک کارمل، مير اکبر خيبر، سلطان علي کشتمند، ډاکتر نجيب الله، محمود بريالی او نورو په مشرۍ ډله د پرچم په نوم ډلې يو له بله سره جلا شوې او يو د بل په خلاف يې سختې دښمنۍ ته مخه کړه. د شوروي اتحاد د کمونست ګوند ړوند او مرموز سياست چې خپل ګوډاګی حزب يې له دننه څخه د دوه ټوټو په بڼه جوړ کړی ؤ، د انشعاب په مهال يې د بل لوري د بې اعتباره کولو لپاره په څرګنده تبليغات کول او يو د بل په خلاف يې شواهد او اسناد وړاندې کول، او د يو کېدو په وخت کې يې هم رېښتينی، جميمي او د زړه له تل نه عمل نه ترسره کاوه. د دوی کمونستي بادارانو بنايي ددې لپاره له دننه څخه دغه دوه ټوټې کېدو او مخالفتونو ته زمينه برابروله چې سياسي واک ته د رسېدو په مهال په ځان باوري نشي او په خپل سر او خوښه کوم عمل ترسره نکړي، او همداسې وشول هم، چې د قدرت د لاس ته راوړو او د قدرت ساتنې لپاره د خپلو کمونيستي بادارانو له لارښوونې پرته کوم قدم وړاندې کېږدي. سردار محمد داود چې د د. خ. ا. ګوند د خپلو همکارانو افسرانو په مرسته د شاهي رژيم په خلاف د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ په ۲۶ مه کودتا وکړه او سياسي واک يې لاس ته راوړ، او د جمهوري نظام بنسټ يې کېښود، مترقي پروګرام يې د «د افغانستان خلکو ته وينا» په نوم له راډيو افغانستان څخه اعلام کړ. په لومړي وخت کې يې د هيواد له شمالي ګاونډي سوسياليستي شوروي اتحاد سره ښې اړيکې لرلې. ډېر وخت نه و تېر شوی چې سعودي عربستان، ايران او پاکستان ته له سفرونو وروسته يې خپل سياست ته تغيير ورکړ او په خپله يوه وينا کې يې د د. خ. ا. ګوند سوسياليستي ايډيالوژي يوه پردۍ او راوارده شوی ايډيالوژي وبلله. د پرچم او خلق ډلې ټول غړي يې چې په پوځي او ملکي مقاماتو نصب کړي وو، ګوښه او له دولتي ادارو نه يې وايستل. وزرو

وروله شوروي اتحاد سره د افغانستان خورې او دوستانه اړيکې مخ په سړېدو شوې. څرنګه چې شوروي اتحاد احساس کړه چې داؤدخان له شوروي اتحاد پرته د نورو سياستونو د خپلولو په لټه کې دی، نو د خلق او پرچم ډلې يې وحدت او يوځای کېدو ته اړ ايستلې، او د يوه پلينوم په ترڅ کې چې د ۱۳۵٦ کال په وروستيو کې په کابل کې د شوروي اتحاد په سفارت کې جوړ شوی ؤ خلقيان او پرچميان يو شول خو په يوځې برخه کې د دواړو ترمنځ اتحاد نه ؤ شوی. په هرحال د روسانو په سلا او اشاره د يوه وسله وال پاڅون په نتيجه کې د داؤدخان دولت نسکور شو، او سياسي واکمني د ۱۳۵۷ کال د ثور په ۷ مه د د. خ. ا. ګوند لاس ته ورغله، سياسي واک ته له رسېدو وروسته هم دغو دواړو ډلو د يو واحد او يو موټي ګوند په توګه عمل ونکړ، د ځان غوښتونکو او ځواک غوښتونکو مشرانو په تنديو کې د تکتيکي او له فريب نه ډک وحدت نښې د سياسي ځواک د ترلاسه کېدو په لومړۍ مياشت راڅرګندې شوې. د مهمو چوکيو پر سر شخړه او د ثور د انقلاب پاڅون د بريالي کېدو په اړه د مشرانو تفوق غوښتنه هغه اختلافات وو چې ګوند يې له داخل نه تخريباوه. په داسې حال کې چې د هغوی روسي بادارانو او کمونستي سلاکارانو دا ټول حالات مشاهده کول، په ښکاره خو يې دواړه ډلې يووالي ته هڅولې او د وحدت مشوره يې ورکوله خو هېڅکله يې نه غوښتل د د. خ. ا. ګوند د مشرتابه په دننه کې ژور اختلافات رفع او له بېخه وباسي. عملاً وليدل شول چې څه ډول د شوروي سلاکارانو په شتون او حضور سره ببرک کارمل او د هغه ډله د سفيرانو په نوم له افغانستان څخه رخصت شول؟

د سلاکارانو او د مسکو سفير پوزانوف چې د تره کي پلوي ؤ په شتون سره د جمهوري ارګ په داخل کې څه ډول په حفيظ الله امين باندې د وژلو په نيت ډزې وشوې؟

دا هم جوته ده چې د کيوبا له سفر نه وروسته تره کي څه ډول د حفيظ الله امين لخوا ونيول شو او د ارګ د باغچې په مانۍ کې له ۱۷ ورځو بندي کولو وروسته د هغه په خوله د بالښت په ايښودو سره په سا بندېدو ووژل شو، او همدا

سوسیالیستي شوروي اتحاد ؤ چې د امین دولت یې په رسمیت وپېژاند. همدا سوسیالیستي شوروي اتحاد ؤ چې د حفیظ الله امین د واکمن کېدو نه ۱۰۱ ورځې وروسته یې له افغانستان نه شړل شوی ببرک کارمل د ۱۵۰ زرو روسي لښکرو او ټانکونو سره افغانستان ته وارد کړ، امین یې د تاجبېګ په ماڼۍ کې د ننه وواژه او کارمل یې د قدرت په ګدۍ کښېناوه او د قدرت لمن یې د خلقیانو له لاسه د پرچمیانو په لاس کې ورکړه.

له شک او تردید نه پرته ویلای شو، هرڅه به چې روسانو غوښتل هماغسې کېدل، تره کی، کارمل او امین لکه د شطرنج د دانو په شان روسانو تبدیل کړل.

د ثور له وسله وال پاڅون نه پس کله چې د یو دیموکراتیک جمهوریت بنسټ کېښودل شو، د د. خ. ا. ګوند په هیواد کې نور ټول هغه سیاسي تحریکونه چې په پخوانیو رژیمونو کې یې د د. خ. ا. له حزب سره یوځای د اپوزیشن په ډول عمل ترسره کاوه غیر قانوني اعلان کړل، د ځینو مشران یې بندیان کړل او د ځینو مشران وتښتېدل. برسېره پردې چې په دولت کې په کومه ونډه ورکولو ورته قایل نشول د هغوی اپوزیسیوني فعالیتونه هم بند او ناقانونه وګرځول. شعلهء جاوید، افغان ملت، اخوان المسلمین او نور ټول لوی او کوچني سیاسي خوځښتونه تس نس کړای شول او د فعالیت لمن یې په هیواد کې دننه راټوله او ان چې ناشوني شوې وه. د دغو سیاسي خوځښتونو مرکزي هستې بهرته لاړلې او د رژیم پر ضد یې خپل فعالیتونه پیل کړل.

د د. خ. ا. یوازیني ګوند چې اصلاً دوه ډلې وې، هره ډله په غټو او کوچنیو فرکسیوني ډلو ویشل شوې وه، د خلق ډله په ځانګړي ډول د امین او تره کی په ګروپونو او د پرچم ډله د کارمل په مشرۍ وروسته بیا په کوچنیو اماتور فرکسیوني ډلو وویشل شوه چې د یوې ډلې مشري سلیمان لایق او د بلې ډلې مشري محمود بریالي کوله. د ډاکتر نجیب الله واک ته د رسېدو تر وخته پورې کومه بېله او فرکسیوني ډله نه وه جوړه کړې، کله چې واک ته ورسېد نو په غیر ارادي ډول کوم کسان چې په ګروپونو کې شامل نه وو او یا د خلق او پرچم ډلو مشرانو څخه راضي او

خوښې نه وو، د نجیب الله په شاوخوا راټول شول، له دې کبله چې نظرونه یې د خلق او پرچم فرکسیونونو په خلاف وو د نجیب الله د ګروپ په نوم ونومول شول.

تر دې دمه چې موږ څه ولیکل له هغې څخه داسې څرګندیږي چې د د. خ. ا. ګوند د بنسټ او جوړېدو له وخته لومړی د خلق او پرچم په ډلو او وروسته بیا دواړه ډلې په نورو څو ګروپونو ویشل شوي ؤ، چې واک ته له رسېدو لږ وروسته د انشعاب په لوري وهڅېدل او د حکومت کولو شپاړس کلونه یې په پټ او ښکاره مخالفتونو تېر کړل، ان چې یو د بل په خلاف یې کودتاګانې وکړې. د تره کي پر ضد د امین کودتا، د امین پر ضد د کارمل کودتا، د نجیب الله په خلاف د شهنواز تني کودتا او له نظار شورا سره په ائتلاف کولو د عبدالرشید دوستم کودتا، همدا راز د نظار شورا په مشرۍ د کارمل په لاس لرلو سره د نجیب الله په خلاف کودتا، دا ټول هغه واقعیتونه دي چې د خلق او پرچم د ځان غوښتونکو او قدرت غوښتونکو مشرانو اختلاف په ثبوت رسوي.

## په سمنګان ولایت کې:

پخوا اشاره وشوه چې د ګوند داخلي اوضاع په چټکۍ سره تغییر ومونده. د کادرونو د ځای په ځای کولو سیاست چې باید د ورتیا، د تحصیل درجې، مسلک او تجربې او نورو علمي معیارونو له مخې ټینګ شوی وای، لکه څرنګه چې د د. خ. ا. ګوند د مرکزي کمیټې په مصوبو کې په لیکنو او د کاغذ پر مخ د غو معیارونو ته اشاره کېدله خو په عمل کې د تره کي او کارمل ترمنځ د نیولو او زور آزمویلو په بنسټ عمل کېده او په دې برخه کې حفیظ الله امین ګټونکی ؤ. ما تر دغه وخته په بشپړ ډول دا نه احساسوله چې د سمنګان ولایت ته د امنیې د قوماندان په توګه زما تبدیلي هم د همدغو رسه کشیو په ترځ کې ترسره شوې ده، ځکه زه په هېڅ فرکسیون پورې نه وم تړلی او ځان مې په یوې ډلې پورې تړلی نه شمېره، خو له دې امله چې د پرچم ډلې له یو څو تنو سره مې پخوانۍ شخصي اړیکې او پېژندګلوي لرله نو هرو مرو یې زه د یوې ډلې سره تړلی شمېرلم. د همدې کشمکش په ترځ کې د یوې

نامحسوسې لنډ نظرۍ له امله زه له کابل نه د یو دریمې درجې ولایت ته تبدیل او د کارمل ډلې په لست کې شامل وګڼل شوم په داسې حال کې چې ما له هېڅ ډلې او هېڅ مشر سره تړاو نه درلود بلکې د دغو ډلبندیو مخالف وم.

له معمول سره مخکې له دې چې سمنګان ولایت ته لاړ شم په کابل کې باید له ګوندي او دولتي لوړو مقاماتو سره وګورم، د ژاندارم او پولیس له عمومي قوماندان تړون، د کورنیو چارو له وزیر نوراحمد نور او د بهرنیو چارو له وزیر او د. خ. ا. ګوند د پوځي برخې مسئول حفیظ الله امین سره مې وکتل. د دریو میاشتو په اوږدو کې له حفیظ الله امین سره زما دې دوهم ملاقات د محتوا او اهمیت له نظره ډېر توپیر درلود.

په دې کتنه کې امین زه په انتظارخانه کې پوره دوه ساعته ایسار کړم، کله یې چې دفتر ته ورننوتم په ډېره سړه وضع یې د ګوتو په سرونو لاس راکړ. بې له دې چې ما ته د کښېناستو اجازه راکړي په ولاړو پښو یې راته وویل: «تر اوسه لا نوې وظیفې ته نه یې تللی؟» ومې ویل: «کارونه مې بشپړ دي سبا ته ځم.» د خدای پامانۍ لپاره یې لاس راکړ او ویې ویل: «سبا ته حرکت وکړه. ما لا تر اوسه حزبي تشکیلات نه دي جوړ کړي، کار وربا‌ندې کوم، کله چې جوړ شول، سمنګان ته په حزبي تعرفه درواستول شي، اوس له حزبي تعرفې پرته دندې ته حاضر شئ.»

د حزبي تشکیلاتو په حساب زما ګوندي غړیتوب وځنډول شو او له دفتر نه یې راووتم.

بې له دې چې کومه ګنګوسه ولرم د امین لومړی او دوهم ملاقات زما په اړه چې د هغه په خپله وینا د نیول کېدو په شپه او د وسله وال پاڅون په لومړۍ ورځ مې ورسره په ځومره اخلاص او مینه او د مسئولیت په قبلولو چلن کړی ؤ، په خبرو کې یې ډېر لوی توپیر راغلی ؤ. د حزب په دننه کې د وضعیت په اړه له دې ځخه کولای شو اټکل وکړو چې قدرت ته تر رسېدو لږ وروسته تر کومې کچې بحراني شوی ؤ. خو په سمنګان ولایت کې د غلام رسول یوسفي په نوم یو شخص والي ؤ. که څه هم د تحصیل او تجربې په لحاظ یې منځنۍ درجه لرله، خو کړنه یې اګر که د تاکتیک او ریا

رنګ درلود خو د خلکو د خوښۍ وړ ؤ. په ښار کې د نرخونو د ټاکلو او کنټرول لپاره يې جدي کميسيون ټاکلی ؤ، په خپله به يې په بازار کې د خوراکي توکو د نرخونو څارنه کوله.

د جمعې په ورځ د پروګرام سره سم د ادارو له څو تنو رئيسانو (د عدلي محاکمو رئيس، مستوفي، څارنوال، امنيې قوماندان، د زراعت رئيس، د ښوونې او روزنې رئيس، ښاروال او نورو) رئيسانو سره د ښار نږدې او ګرندېو کليو دوه يا درې جوماتونو ته تلل، د خلکو په وړاندې به يې اودس کاوه او له خلکو سره يوځای به يې د جمعې لمونځ ادا کاوه. د خلکو کوچنۍ کوچنۍ ستونزې به يې د سپين ږيرو او د جومات د خلکو په مشوره د خلکو په مخکې ځای پرځای هواروليې. د هرې جمعې په ورځ به والي د ادارو د څو تنو رئيسانو سره يوه جامع جومات ته، مستوفي له دوه تنو رئيسانو سره بل جامع جومات ته، د عدلي محاکمو رئيس له نورو دوه تنو رئيسانو سره بل جامع جومات ته له پروګرام سره سم په ترتيب سره تلل. د جمعې لمونځ به يې له خلکو سره يوځای ادا کاوه او د ځمکو، اوبو لګولو، حقوقي مسايل او نورې ناوړه جنايي او د جرم وړ فقرې به يې د قومي جرګو له لارې حل کولې. خلک د حکومت له دغه ډول کړنو څخه چې په حق او انصاف ولاړې وې او د خلکو په مخکې د خلکو په قضاوت حل او فصل کېدلې او د وخت او پيسو د ضايع کېدو مخه په کې نيول کېده ډېر زيات خوښ او راضي وو. افسوس چې په ټولو ولايتونو کې او د ګوند د مشرتابه په کچه داسې احساس ژوندی وای چې خلک يې ورځ په ورځ په ځان راڅرخولې.

د ادارو له څو تنو رئيسانو سره يې ولسواليو ته سفر کړه او د ولسواليو د خپل منځي شخړې يې د همغه ځای د خلکو په مشوره په ډېر ارځيز ډول بې له دې چې د مامورينو کنټرول او جاجونه په کې وي حل او فصل کولې، خو افسوس چې دغه ډول اجراآت تر ډېر وخته دوام ونکړ. د حزب په دننه کې د اوضاع بدلون او د کادرونو تغيير او بدلون د مسئولينو او مامورينو د کړنو بڼه هم بدله کړه. د ديموکراتيک جمهوريت له جوړېدو نه ۳ يا ٤ مياشتې تېرې شوې وې چې د ګوند په مشرتابه کې

دننه اختلافات په ډاگه شول او د چاودني حالت يې غوره کړ. د خلکو تير ايستونکی گوند، د کارگرانو مخکښ گوند، د ټولو دهقانانو او زحمت کښانو گوند چې د اپوزيسيونی مبارزو پر مهال يې خلکو ته د خدمت کولو، عدل، انصاف او برابرۍ وعده ورکوله، د قدرت له لاسته راوړو وروسته په داسې خطرناکه او مرگونی ناروغۍ اخته شو چې ټولې ژمنې يې له ياده ووتلې او په خلکو يې داسې ظلمونه وکړل چې ترننه پورې افغان بېچاره اولس د هغې د اور په لمبو کې سوځي او زمونږ آباد او سمسور هيواد په کنډوالو بدل شو.

د تغيير او تبديليو په لړ کې د سمنگان والي يوسفی هم تبديل شو او پر ځای يې د الله داد طوفان په نوم يو شخص د سمنگان د والی په حيث وټاکل شو.

له رسم سره سم د ادارو رئيسان د رياتک کوتل د حق العبور دروازې ته د نوی والی د هرکلی لپاره ورغلی وو، کله چې والی د هرکلی کوونکو د ليکو په مخکې له موټر نه کښته شو نو هغه مې وپېژانده. دا هغه الله داد نومی ؤ، کله چې په کال ۱۳٤۷ کې زه د کندز د دشت ارچی ولسوالۍ د امنيې قوماندان وم، نوموړی د ولسوالۍ د لومړنی ښوونځی د تحويلخانې کاتب ؤ. په هغه وخت کې نه د گوند غړی و او نه طوفان، له هغه لومړنی ښوونځی څخه فارغ شوی و او د اړتيا له مخې په همغه ښوونځی کې د تحويلخانې د کاتب په حيث مقرر شوی و. د ولسوالۍ اوسيدونکی د نورو ولايتونو ناقلين وو، الله داد طوفان هم د جنوب لويديز ولايتونو څخه د کاکړو له قوم سره د دشت ارچی ولسوالۍ ته راليږدېدلی ؤ.

## طوفان سمنگان ته طوفان راوړی ؤ:

الله داد طوفان د خپلو ملگرو د «سره خلقيانو» په نوم يو گروپ سره د سمنگان ولايت ته نازل شول. «سره خلقيان، گلابی خلقيان، کنجکی خلقيان» دا هغه اصطلاحات وو چې خلقيانو يو د بل په اړه کارول. هغه گروپ چې په حفيظ الله امين پورې يې تړاو درلود د سره خلقيانو په نوم يادېدل. اتفاقاً چې د طوفان د گروپ همکاران ټول د دشت ارچی ولسوالۍ احساساتي، بې تجربې او بې علمه

ځوانان وو ، د ولایت چوکۍ یې د قرعه کشۍ په اساس په خپلو منځو کې وویشلې ، پخواني مامورین او کارکوونکي څوک ونیول شول او څوک وتبتېدل. له هغې جملې څخه د عامې روغتیا رئیس ډاکتر حبیب منګل او په خپله زه تر یو وخته پورې په خپل ځای پاتې شوی وو او هغه هم له دې کبله چې د طوفان په ګروپ کې ډاکتر او کوم مسلکي افسر شتون نه درلود . په دې سربېره کله چې زه د ارچي ولسوالۍ قوماندان وم ، د الله داد وررور د سیمې د بې سواده قریه دارانو څخه ؤ ، هغه به خپل کارونه د خپل وررور الله داد په واسطه چې باسواده او روښ فکره ځوان ؤ ترسره کول. ما هم په دې خاطر چې د ولسوالۍ روښانفکره کېږیو ته مې وده ورکړې وې له هغه سره مې ښه چلن کاوه. د همغې پېژندګلوۍ ترمخه الله داد ماته د استاد خطاب کاوه. د الله داد طوفان په راتګ سره په سمنګان ولایت کې د ویرې او وحشت څپه خپره شوه ، هېڅوک له ځانه خبر نه وو. مامورین ، ښوونکي او کارکوونکي له خپلو دفترونو څخه ، هټیوال او سوداګر د خپل کار له ځایونو څخه ، امامان له جوماتونو څخه ، دهقانان له خپل کروندو څخه او نور خلک له خپلو کورونو څخه د مخالفینو او توطئه جوړوونکو په نومونو سره نیول کېدل او زندان ته اچول کېدل. ځمکه وال ، مخور ، روحانیون او مشران به د شپې لخوا چې کورونه به یې محاصره او بیا تالاشي کېدل ، نیول کېدل او د زندان تورو کوټو ته استول کېدل.

والي د بې پولې واک او صلاحیت له درلودلو سره سره د ولایتي ګوندي کمیټې منشي هم ؤ. مستوفي او د منشي مرستیال د محمد هاشم « دقیق » په نوم د سمنګان یو احساساتي او بې تجربې ځوان ؤ. دی تر دغه وخته د کابل له تجارتي مسلکي ښوونځي لا فارغ شوی نه ؤ ، د سمنګان ولایت په اداري چوکاټ کې یې د سمنګان دولتي او حزبي کسان راټول کړل ، دوی پخوانۍ عقدې او نابرابرۍ په دښمنۍ سره محاسبه کولې او له پخوانیو مخالفینو سره یې د غچ اخیستو معامله او چلن کاوه.

عجیبه خو دا وه چې ټولې نیونې او تالاشي ګانې د والي په امر د ولایت د امنیه قوماندانۍ په واسطه عملي کېدې. هماغه قوماندان چې څه موده مخکې به

یې د جمعې په ورځو په جامع جوماتونو کې د ځايي خلکو سره لکه د ورونو په شان یوځای د جمعې لمونځ ادا کاوه او د خلکو ستونزې، جزايي او حقوقي قضیې به یې د خلکو د پرېکړو تر مخه ځای پرځای حل او فصل کولې، او س یې په نیمه شپه کې بېګناه خلک له خپلو کورونو څخه رابهر کول او په زندانونو کې یې اچول، د درې اونیو په موده کې ۲۵ تنه د اثر او رسوخ، مخور او د عزت خاوندان چې ځمکه وال، علماء، اربابان، د پارلمان پخواني وکیلان، د بزکشۍ رئیسان او نور په کې شامل وو ونیول شول او بې سرنوشته زندان ته واچول شول. د یوه په باره کې هم په امنیه قوماندانۍ کې د هغوی د جرم او ګناه کوم سند موجود نه ؤ. د غو ناقانونه کړنو زه زوروولم، یو وړاندیز مې په دې برخه کې ترتیب کړ او د والي دفتر ته ورغلم، اول مې په شفاهي ډول د بندیانو په اړه ورسره خبرې وکړې، د قانوني اجراآتو، د څارنوالۍ د چارو، د جزایي چارو قانون چې په هغه وخت کې په خپل حال او نافذ ؤ، د خلکو د کورونو د تالاشۍ په برخه کې، د شکمنو کسانو د څارنې، د پولیس صلاحیت، د څارنوال او محکمې د صلاحیت د قانون په اړه مې وضاحت ورته وکړ او ورته مې په ډاګه کړه چې په دوه اونیو کې ۲۵ تنه پرته د محکمې د تحریري احکامو او پرته له کوم سرنوشت نه په زندان کې پراته دي، چې دا عمل له نافذو قوانینو څخه څرګنده سرغړونه ده. والي ته مې د یو پخواني دوست په حیث په درناوۍ او دوستانه لهجه وویل تاسو د دولت د نایب په حیث او د ولایت د لومړۍ درجې مسئول په حیث د کارکوونکو څخه د غچ اخیستنې چلن مخه ونیسئ چې مخور او د اثر او رسوخ خاوندان بېګناه نیول کېږي او په یوه او بله پلمه نیول کېږي او په بېلابېلو تورونو متهم کېږي. زه له کابل نه او ته له کندز ولایت نه د سمنګان ولایت د خلکو د خدمت لپاره مؤظف شوی یو، د دې ولایت د خلکو سره کومه بنه او یا ناوړه سابقه نلرو، د خلکو په مقابل کې زمونږ چلن باید قانوني او ناپییلی وي. دا قانوني قاعده ده چې که یو مجرم په سهوه او اشتباه سره د قانون له منګولو بچ پاتې کېږي، نو دومره مسئولیت نلري لکه څومره چې یو بېګناه شخص قصداً او عمداً مجازات کېږي. دا به له خلکو، انقلاب او حزبي او دولتي مشرتابه سره خیانت وي. والي چې زما له

 څرګندې لهجې سره آشنایي لرله زما د خبرو تایید یې وکړ، خو په ګروپي او فرکسیوني نظریاتو کې دومره ډوب شوی ؤ چې په عملي توګه یې نشوای کولای د هغې مخه ونیسي.

د ۲۵ تنو د خوشې کولو په اړه مې چې هرڅومره ټینګار وکړ څه ګټه یې ونکړه. په پای کې راته والي وویل: «د دغو اشخاصو په هکله په ولایتي کسیته کې بې شمېره اطلاعات او راپورونه موجود دي. تاسو مخالفت مه کوئ ګنې ګوندي ولایتي کمیټه به په تاسو هم بې باوره شي.» ما ورته وویل: «نه داسې نه ده، زه د ولایتي ګوندي کمیټې د تصمیمونو سره مخالفت نه کوم. زه د هغو کړنو په اړه اندېښنه لرم چې د امنیه قوماندانۍ له لارې په ناقانونه توګه ترسره کېږي، که کوم باصلاحیته پلاوي له مرکز نه راشي د دغو ۲۵ تنو بندیانو په هکله چې بې سرنوشته په زندان کې پراته هېڅ جواب نشته، ځکه په شفاهي امر یې کورونه تالاشي شوي او د کوم جرم له ثبوت نه پرته په زندان کې اچول شوي دي. له دې امله چې زه د محبس، نظارتخانې او توقیف خانې د لومړۍ درجې مسئولیت په غاړه لرم، ځکه نو د هغې مسئولیت مستقیماً زما په غاړه دی.»

والي په خندا وویل: «مه وېرېږه، زه د ولایت لومړی درجه مسئول او د دولت نماینده یم، زه دا صلاحیت لرم، هغه اشخاص چې د انقلابي دولت پرضد تبلیغات کوي او خلک د دولت پرضد راپاروي ونیسم او بندیان یې کړم او حتی اعدام ته یې جوړ کړم. څوک چې له مونږ سره نه دي، زمونږ نه دي. څوک چې د دولت ضد دی، دښمنان دي، او دښمنان باید له منځه یوړل شي.» زه د والي په خبرو حیران شوم، فکر مې وکړ چې د داسې خودمختار والي سره چې له د بچه سقاو د دورې حاکمانو په شان دی څه وکړي، کوم پېشنهاد مې چې له وړاندې ترتیب کړی ؤ په مخکې ورته کېښود، ویې لوست، قلم یې راواخیست او داسې احکام یې ولیکل:

«ورکتال شو! د هغو اطلاعاتو په اساس چې د ولایت د مقام د ولایتي کمیتې په وړاندې موجود دي، د امنیه قوماندانۍ ته هدایت ورکړ شوی و چې د ولایتي کمیتې د مؤظفو غړو سره د شکمنو اشخاصو کورونه تلاشي کړي او هغوی د پلټنو لپاره

ما د خپلې دندې په پای کې د لاریون او غونډې په اړه یو لنډ او عادي راپور د کابل امنیې قوماندانۍ ته وړاندې کړ، په خپل راپور کې مې د هغو مطالبو له ذکر کولو څخه چې حکومت د د. خ. ا. ګوند پرضد په قهر او راوپاروي ډډه کړې وه.

## د د. خ. ا. ګوند د مشرتابه پلاوي بندیانول:

د سردار محمد داود خان په رژیم کې د ترافیکو مامور څارمن عبدالقدیر خان نورستاني چې د داودخان د کودتا له ملګرو څخه ؤ په لومړي سر کې د ژاندارم او پولیسو د عمومي قوماندان په حیث او بیا د کورنیو چارو د وزیر په توګه، د باوري وزیرانو له جملې څخه د مالیې وزیر عبدالاله او دفاع وزیر غلام حیدر رسولي چې د داودخان په کودتا کې یې د شخصي ملحوظاتو له مخې، نه چې د هیواد د لوړو مصالحو په اساس، ګډون کړی ؤ له خپل فهم او لیاقت څخه لوړې چوکۍ یې لاس ته ورورې وې.

خبره د قدیر نورستاني ده، چې نه کوم ملي شخصیت و او نه علمي، بلکې پلار یې د داودخان په وړاندې یو اعتمادي او د باور وړ سړی ؤ. د محمدزیو په کورنۍ کې محمد داؤد خان د ملګرو او وفادارو دوستانو په اړه د یو ځانګړي خصلت خاوند ؤ چې عبدالقدیر هم (د پلار دوست یې ده ته زوی ویلی وو) هغه مهال چې داودخان لس کاله په کور ناست ؤ، له هغه سره د خدمت کولو بنې اړیکې ساتلې وې. ان چې د کودتا په پټ راز کې هم شریک شوی ؤ. همدا راز سید عبدالاله د سید عبدالله زوی چې د محمد داؤد خان د صدارت په زمانه کې وزیر او د صدارت مرستیال ؤ، د غه بې تجربې ځوان د صدارت د معاون او د مالیې د وزیر په توګه ټاکل شوی ؤ. همدا راز په کور کښېنول شوی ډګروال غلام حیدر رسولي چې د چرس څکلو معتاد ؤ او په پوځي نظام کې یې هم کومه مسلکي پیاوړتیا نه درلودله، د داودخان په رژیم کې د دفاع د وزیر په حیث ټاکل شوی ؤ، چې په حقیقت کې د دولت څرخ د دغو دریو تنو په لاس څرخول کېده. د دفاع او کورنیو چارو وزیرانو له وړاندې نه په بدو اخیستلو شهرت درلود، د ترافیکو پخوانی مامور قدیر نورستانی خو لا له وړاندې نه د ترافیکو د

حاضر کړي، د امنيه قوماندانی دنده لري چې د پښنهاد په متن کې شامل کسان د پلټنو د بشپړېدو تروخته پورې ترڅارنې او توقيف لاندې ونيسي. (د والی لاسليک) » خپل تحريري احکام يې ماته ولوستل او راته ويې ويل: « ترکومه چې زه والی يم، په داسې مواردو کې هرډول تحريري احکام چې ستاسو لپاره سند کېدای شي، کولای شې له ما څخه يې ترلاسه کړې. »

لږوروسته خبر شوم چې د عامې روغتيا رئيس حبيب منګل د شپې لخوا په خپل کور کې نيسي. غوښتل مې چې په يو ترتيب سره هغه ته اطلاع ورکړم، خو له نېکه مرغه هغه په خپله خبر شوی ؤ او په همغه شپه يې ځان له کوره څنډې ته کړی ؤ. زما لپاره هم خطر زنګ ؤ، لومړی مې خپل فاميل کابل ته ولېږداوه، او ځان ته مې پاملرنه وه چې غافل نشم. د پوليسو يو ځوان افسر محمد نذير چې زما د مينه والو او مخلصينو څخه ؤ، د والی د ياور په توګه وټاکل شو. هغه مې په دې پوهولی ؤ چې ځان غير حزبي او بې پلوه معرفي کړي، نو ښکاره ده چې والی هغه د ګوند خپل ګروپ ته د غړيتوب لپاره جذب او جلباوه او همداسې وشول. محمد نذير ته مې دنده ورکړې وه، هر وخت چې زما په اړه کوم تصميم نيسي او يا زما د نيولو پرېکړه کېږي، چې سمدستي ما په جريان کې واچوي.

لږه موده لا نه وه تېره شوې چې محمد نذير خبر راکړ، د حبيب منګل له تېښتې او ګوښه کېدو د شپې په غونډو کې والی، مستوفی او څو تنه نور د ولايت کميټې غړي يو پر بل پړ ا چوي، نن شپه يې هم په دې اړه ډېرې خبرې وکړې او ويې ويل چې قوماندان په کور او دفتر کې نشو نيولی ځکه چې قوماندان په کور او دفتر کې ټينګ امنيتي تدابير نيولي دي. ښايي د ګډو عملياتو په ترڅ کې د شپې لخوا له ښار نه لرې د هغه چاره وکړو.

زه له پخوا نه د غې ډول توطيې ته متوجه وم خو د محمد نذير خبر تيا زما غوږونه نور هم خلاص کړل. د دې ورځې په سبا ته ماز ديګر مهال ماته په ټيلفون وويل شول: « نن شپه مستوفی د ولايتي کميټې له څو تنو غړو سره او په خپله تاسې د يوې دندې د ترسره کولو لپاره يو ځای ته ځئ، يوه قوه برابره کړه، د ماخستن ډوډۍ

له خوړلو نه وروسته مستوفی له ملګرو سره ستا څنګ ته درځي، د عملیاتو بشپړ پلان له مستوفی سره دی، تا به له نږدې څخه په جریان کې واچوي، تاسو شخصاً په عملیاتو کې له هغوی سره ګډون وکړئ ځکه چې دا عملیات ډېر مهم دی.» زه وپوهېدم چې دا همغه ځانګړی پلان دی. ما والی ته هېڅ ونه ویل. د امنیت آمر ته مې لارښود نه وکړه چې د یو بشپړ ځواک سره د شپې د عملیاتو لپاره چمتو اوسي او له مستوفي سره یوځای حرکت وکړي. زه د یوې بلې ځانګړې دندې د ترسره کولو لپاره ځم. مابنام ته نږدې د ترافیکو تیوتیا ډوله موټر کې کښېناستم او د حیرتان د کمیسارۍ د چارو د جاجونې په موخه د حیرتان بندر په لوری وخوځېدم. هغه وخت د حیرتان بندر په سمنګان ولایت پورې مربوط ؤ. سبا ته د جمعې ورځ وه، په مزار شریف کې د سخی صاحب زیارت ته ورغلم، د جمعې په ماز دیګر ایبکو ته راستون شوم. د امنیت آمر د شپې د عملیاتو په اړه راته ګزارش تېر کړ، والی او مستوفی له دې امله چې په عملیاتو کې مې شخصاً ولې حضور نه درلود د راتلونکو پلانونو په خاطر له عارفانه تجاهل څخه کار واخیست او هېڅ یې ونه ویل او په دې ترتیب مې د ځان په اړه د ترور پلان په مهارت سره شنډ کړ. که څه هم په خپله والی زما د ترور کولو سره علاقه نه لرله، خو هاشم دقیق او د ګروپ نورو غړو د ډېر فشار له امله والی دې کار ته اړ ایستلی ؤ. له دې امله چې ما په ډېر مهارت سره له ترور څخه نجات وموند او والی هم له زړه نه خفه نه معلومېده، نور له دې ناکامۍ څخه رنځېدلی و، زه د فرصت په انتظار کې وم چې څه ډول د دې توطیه ګرو او دسیسه کارانو له پنجو څخه نجات ومومم او هم له خپلې پوځي دندې او دولتي پوست څخه تېښته ونکړم، ځکه چې له خپلې دندې څخه زما تېښته سرغړونه شمېرل کېده چې درنه سزا یې لرله.

## د قادر، رفیع او میر علی اکبر شعارونه:

د پرچم ډلې د مشرانو له تېښتې وروسته په مرکز کې وضع ورځ په ورځ کړکیچنه کېدله. که څه هم نور محمد تره کی په ښکاره خو د د. خ. ا. ګوند د

عمومي منشي او د انقلابي شورا د رئیس او صدراعظم په توګه د قدرت په ګدۍ ډډه لګولې وه، خو په حقیقت کې حفیظ الله امین د رژیم واکمن ؤ. د اګسا د جاسوسي شبکه (د افغانستان د ګټو ساتلو اداره) د ضبط احوالات د ریاست او د پخواني مصئونیت ملي د ریاست ځای نیولی ؤ او په خپلو ویرونکو او ظالمانو فعالیتونو یې لاس پورې کړی ؤ. هره ورځ به یې د ټولنې د بېلابېلو کړیو افراد په بېلابېلو پلمو او نومونو د مخالفینو په نوم نیول.

د حزب او اګسا کارکوونکو دا شعارونه زمزمه کول: «څوک چې زمونږ سره نه دي زمونږ نه دي، څوک چې زمونږ نه دي زمونږ مخالفین دي، مخالفین دښمنان دي، له دښمنانو سره څه باید وشي.»

تر همدې شعار لاندې د هیواد معنوي پانګه، د پوهې خاوندان، د علم او مسلک خاوندان، سیاستوال، د قوم مشران، ځمکه لرونکي، دیني عالمان او روحانیون، روښاندي، نارینه او ښځینه محصلین، ښوونکي، ښځینه ښوونکې، د پوهنتون استادان او پوځي افسران په بېلابېلو تورونو، نیول کېدل، بندیان کېدل او یا تر خاورو لاندې کېدل.

د ۱۳۵۷ کال د چنګاښ د میاشتې په وروستیو کې د شپې په ۸ بجو د افغانستان راډیو له لارې دا اعلامیه خپره شوه چې: «د ثور پرتمین انقلاب چې د ټولو خواري کښو له حقوقو څخه ملاتړ کوي، ځیني پلیت عناصر چې خپلې ګټې په خطر کېویني، بېلابېلې توطیې او دسیسې په لاره اچوي، انقلابي دولت په پوره ویښتیا سره د پلیتو عناصرو توطیې مخکې له دې چې بریالۍ شي شنډوي او د هغوی منحوسې څېرې افشا کوي.» جنرال عبدالقادر، محمد رفیع او میر علي اکبر چې غوښتل یې د انقلابي دولت پرضد کودتا وکړي، ونیول شول او د قانون منګولو ته وسپارل شول، پلټنې دوام لري، پایلې به یې په راتلونکې کې د ګرانو هیوادوالو په اطلاع ورسېږي.»

د دې اعلامیې په بنسټ یو زیات شمېر پوځي او مسلکي افسران ونیول شول او له دندو څخه ګوښه کړای شول. تره کی به همیشه په خپلو رسمي ویناو کې ویل:

«اردو باید د ورانکارو عناصرو او مرتجع کسانو څخه پاکه شي او یوه ښندونکې خلقي اردو جوړه شي.» او همداسې وشول. ملي اردو څو ځلې په بېلابېلو تورونو سره له غوره او بهترینو مسلکي پوځیانو څخه پاکه شوه.

د هوايي ځواک جنرال عبدالقادر چې د ظاهرشاه په خلاف د محمد داود په کودتا کې یې ونډه درلوده او د محمد داودخان په پرزولو کې یې هم ښکاره خدمت ترسره کړی ؤ، په دې ګناه چې له ببرک کارمل سره یې دوستانه اړیکې لرلې او چکوسلواکیا ته د سفیر په توګه له تللو وړاندې د هغه په کور کې یې ورسره کتنه او ملاقات کړی ؤ او ان چې د پراګ په طرف د پرواز په مهال ببرک کارمل ته هوايي ډګر ته ورغلی ؤ، محمد رفیع چې د پرچم ډلې د پېژندل شویو افسرانو له ډلې څخه ؤ چې د ثور د اوومې نېټې د وسله وال پاڅون په لومړی ورځ یې فعال رول لوبولی ؤ او د ببرک کارمل د لومړۍ درجې له پلویانو څخه ؤ، او ډاکتر میرعلي اکبر د جمهوریت د روغتون رئیس چې د کمونیزم له مخالفینو څخه ؤ، درې واړه د ناکامې کودتا په تور ونیول شول او زندان ته واچول شول، او د ناکامې کودتا د توطیې د غندلو په موخه د ولایتي حزبي سازمانونو او همدا راز د ولسوالیو حزبي سازمانونو غونډې او لاریونونه وکړل او د مرګ پر قادر، مرګ پر رفیع، میرعلي اکبر او د هغوی په ملګرو ورکول کېدل.

جنرال عبدالقادر او محمد رفیع د ۱۳۵۸ کال د مرغومې تر ٦ مې نېټې پورې په پل چرخي زندان کې بندیان وو، د حفیظ الله امین د واکمنۍ په نسکورېدو سره له زندان څخه خوشې شول. جنرال عبدالقادر د د. خ. ا. ګوند د مرکزي کمیټې د دفاع او عدل د څانګې آمر، او جنرال محمد رفیع د دفاع وزیر په حیث وټاکل شو.

د میرعلي اکبر د سرنوشت په اړه دقیق معلومات شتون نلري چې وړاندې شي، چې آیا د پلچرخی زندان نه به ژوندی راوتلی وي او که د هیواد د نورو پیاوړو اشخاصو په شان به پرته له ثبوت او محکمې څخه په خاورو منډل شوی وي.

## د ببرک کارمل شعارونه:

نېږدې تر یوې میاشتې پورې په ټول هیواد کې د قادر، رفیع او میر علی اکبر پر ضد شعارونو ورکولو او غونډو په جوش او ولولو سره دوام درلود. په دغو شعارونو پسې د د. خ. ا. ګوند د مرکزي کمیټې د ببرک کارمل، نور او اناهیتا په نوم نوی شعارونه خپاره شول او د حزبي سازمانونو لپاره د پراخو لاریونونو او غونډو زمینه برابره شوه. تره کی او امین په دې اند وو چې د ببرک کارمل او د هغه د ګروپ د ملګرو په تېښته سره به د پرچم ډلې له لانجې او جنجال نه بېغمه شي، خو دا یوه تېروتنه وه ځکه د پرچم ډلې مشران چې په بهر کې د افغانستان د دیموکراتیک جمهوری دولت لخوا د سفیرانو او باوري استازو په توګه مقرر شوی وو، له هر پلوه خوندي وو، او د هیواد په دننه کې یې له خپلو مخفي سازمانونو سره تماس درلود، هغوی ته یې دستور ورکاوه، د هیواد په دننه کې د ظهور رزمجو، فرید مزدک، نجم الدین کاویانی، محبوب سنګر، سید اکرام پیکر، فدا محمد دهنشین، عبدالمجید سربلند، خدایداد او بشرمل او نور کادرونه او په سلګونو نورې کوچنۍ او سترې کړۍ فعاله وې، په پټه او تر ځمکې لاندې یې مخالفانه فعالیتونه ترسره کول، او د دولت پرضد یې د خپلې ورانکارۍ فعالیتونه یې په ګوټ ګوټ کې په لاره اچول او سازمان کول.

همدا راز د پرچم ډلې یوځي برخه له کلانه چې له نیولو او بندي کولو نه نجات وموند او پټ شول له خپلو مسلکي سازمانونو سره یوځای شول او په ګډه یې فعالیت کاوه، د ورانکارۍ دغو فعالیتونو دولت تر پوزې راوست او له دولت سره یې د لستوڼي د مار په شان چلن کاوه. دولت د یو نیم کال په موده کې هرڅومره کوښښ چې وکړ هرڅومره یې چې ونیول او زندان ته یې واچول، خو د پرچم ډلې پټ فعالیتونه بند نه شول، وروسته بیا دولت په خپله تېروتنه پوهېدلی ؤ، هوډ یې وکړ ترڅو فراري کړۍ ډله بېرته هیواد ته وروغواړي، خو تبعید شوی سفیران د دولت له دښمنۍ ډک پلان څخه خبر وو، بېرته راستانه نه شول، دولت هم اړ شو چې د هغوی سیاسي اعتبار پای ته ورسوي او له سفارتونو څخه یې ګوښه کړي. په پایله کې نور

احمد نور ، اناهیتا راتبزاد ، محمد بریالی ، ډاکټر نجیب الله له ببرک کارمل سره ، د چکوسلواکیا په یوه ایالت کې سره یوځای شول. د چکوسلواکیا سوسیالیستي دولت د سوسیالیستي شوروي اتحاد په مشوره هغوی ته سیاسي پناه ورکړه. د وخت دولت داسې خبر خپور کړی ؤ چې ببرک کارمل جنرال زاده ، اناهیتا راتب زاد ، نور احمد نور ، محمود بریالی او نجیب الله اشراف زاده ګان او د محمدزو او د سلطنتي کورنۍ د دربار کاسه څټي چې د سلطنتي دربار د جاسوسانو په توګه روزل شوي وو. په خارج کې د افغاني سفارتونو ټوله نغدې شتمنی یې غلا کړې او د امپریالیزم لمن ته یې پناه وړې ده.

د قادر ، رفیع او میر علي اکبر په تعقیب د مرګ پر کارغل ، نور ، اناهیتا او د هغوی په ملګرو شعارونه خپاره شول او د هیواد په ګوټ ګوټ کې په حزبي سازمانونو ، اداري او دولتي ادارو کې غونډې او لاریونونه په لاره واچول شول. مرکز ، لسوالیو ، علاقه داریو او ولایاتو حزبي او دولتي مامورینو او کارکوونکو میتنګونه او لاریونونه وکړل او د مرګ په ببرک کارغل ، نور او اناهیتا شعارونه یې پورته کړل.

په سمنګان ولایت کې هم یو ستر مارش په لاره اچول شوی ؤ چې والي او د ټولو ادارو د رئیسانو په ګډون د محکمې رئیس ، د عدلي محاکمو قاضیانو او ټولو دولتي او حزبي مامورینو او کارکوونکو په کې ګډون درلود.

د مارش په لومړۍ کرښه کې والي ، د ولایتي کمیټې غړو او د ادارو رئیسانو وجود درلود او همدا شعارونه یې ورکول او د هورا آوازونه یې پورته کول. یوازې ما او د محکمې رئیس مولوی نقیب الله د ډاکتر سعید افغانی ورور له د غسې شعارونو ورکولو څخه ځان ساتلی ؤ او د نورو لاریون کوونکو په لیکو کې روان وو. په مخکینو لاریونونو کې چې د مرګ پر قادر ، رفیع او میر علي اکبر شعارونه په کې پورته کېدل زه او د محکمې رئیس چوپ وو. د غونډې په پای کې چې حزبي فعالین ، کارکوونکي او مامورین رخصت شول او د والي په دفتر کې د چای څښلو لپاره د ادارو رئیسان وربلل شوي ؤ ، محمد هاشم دقیق ما او د محکمې رئیس

مخاطب کړو او ويې ويل: «د نن ورځې په مارش کې تاسو خاموش وئ، ستړی ستومانه معلوميدئ، د مرکزي کميټې شعار مو يوځل هم په خوله ونه وايه؟» د محکمې رئيس لا خوله نه وه پرانيستې چې ما د هغه جواب ورکړ و مې ويل: «زه او زما همکاران د مارش د ليکو د امنيت ساتنې مسئول وو، مونږ د نظم او عامه امنيت ساتونکي يو، له مونږ نه په موجوده شرايطو کې بايد د سيمې د امنيت ساتنې غوښتنه وشي، مونږ بايد غله، قاتلان او مجرمين وڅارو او ويې نيسو، د ولايت امنيت بايد تأمين کړو، لاريونونه، غونډې او د شعارونو پورته کول بايد حزبي فعالينو ته پرېښودل شي، د غونډو او مارشونو په مهال چې حزبي او دولتي ستر مقامونه په کې ګډون کوي زمونږ امنيتي دندې ډېرې حساسې او مهمې وي، زه او ملګري مې د مارش په ليکو کې په جدي ډول خپلو دندو ته پاملرنه کوو، ويناګانې او شعارونه بايد تاسو حزبي ځوانانو ته پرېږدو.» د محاکمو رئيس هم زما د خبرو په تاييد سره څرګندونې وکړې. مستوفي وليدل او واورېدل چې والي هم زما او د محاکمو د رئيس خبرې په خندا او موسکا سره تاييد کړې، د هاشم دقيق نيوکه بېځايه او بې اهميته پاتې شوه، زما او د محاکمو د رئيس په مقابل کې يې د زړه کينه او بغض په ځای پاتې شو او چوپ شو.

## له ترور نه مې څه ډول نجات وموند:

الله داد طوفان به هره شپه نشه کوله او مست به وٌ. دده د ملګرو د ګروپ يو يا دوه تنه به ورسره وو، چې مست او نشه به شو په سندرو او نڅا به يې شروع کوله، او کله به چې د نشې په حالت کې په غوسه کېده، نو د شرابو د جام خپل ملګری به يې هم زورول. دده د غه عادت او خوی ماته معلوم وٌ، د نشې په وخت کې به چې ورتلم او ځانته به نه وٌ نو ماته به يې د استاد خطاب کاوه او ويل به يې چې: «کاشکې د اشرافيت مهر او ټاپه دې په تندي کې ځلانه کولې، په رېښتيا چې ډېر ژر به لوړو مقامونو او پوړيو ته رسېدلی وای.» خلقيانو د پرچم ډله اشراف زاده ګانو په نوم يادوله. د اشرافيت کلمې په پرچميانو اطلاق کاوه. والي به د مستۍ په حالت کې په

ښه نیت سره راته ویل: «پوهېږم چې ته یو مسلکي او تجربه لرونکی شخصیت یې او له هېڅ کوم فرکسیون سره نه یې تړلی، خو څه وکړم چې د ولایتي حزبي کمیټې غړي احساساتي او بې تجربې ځوانان دي. ته یې ښه نه یې پېژندلی، کله کله ستا په باره کې د بدګومانۍ خبرې کوي.» ما به ورته د یو په یو خبرو په مهال همېشه ویل: «هغوی په دې دلیل په ما تور لګوي چې زه هېڅکله په جزایي او حقوقي مسایلو کې د هغوی سپارښتنه نه منم، ځکه چې د ولایتي او ښاري کمیټو ټول غړي د همدې ځای خلک او وګړي دي، په منځنۍ شخړو کې د خپلو دوستانو او خپلوانو پلوي کوي، که د دوی سپارښتنې او فرمایشونه ومنم نو د بېګناه او زیان لیدونکو خلکو د حقوقو په وړاندې به زه مسئول وم، ځکه مې هوډ کړی دی چې په حقوقي او جزایي مسایلو کې چې کړنه او سرته رسول یې په امنیه قوماندانۍ پورې اړه لري د حزبي غړو فرمایشونه او سپارښتنې نه قبلوم، نو په دې اساس هغوی له مانه راضي او خوښ نه دي. پرېږده هغوی چې هر قضاوت کوي، خو ستا په وړاندې اداري مسئولیت لرم، کله چې تاسو په ما بدګومانه شوئ په همغه شېبه کې زه چمتو یم د خپل حساب تصفیه وکړم او ستا بدګومانی رفع کړم.»

په کوم وخت به چې والی مست او خوشحاله ؤ، ورته به مې ویل: «ته د دشت ارچي ولسوالۍ او زه له بل ځای نه د خدمت په موخه دې ولایت ته مؤظف شوي یو، د دې سیمې له خلکو سره نه ښه او نه بده کومه سابقه نلرو، زمونږ قضاوت باید بېطرفه او بې غرضه وي، خو د کمیټو غړي او احساساتي ملګري د دې سیمو خلک دي، په ډېرو حقوقي او جزایي مسایلو کې د خپلو خپلوانو ګټو ته ترجیح ورکوي، که مونږ او تاسو د هغوی غوښتنو سره سم عمل وکړو، نو طبیعي ده چې د نورو حقوق تر پښو لاندې کېږي او ورو ورو به عام خلک په مونږ بې باوره شي او پر ګنې به له حزب او انقلاب څخه فاصله پیدا کړي.

په وروستیو نیونو کې د یو شمېر خلکو کورونه چې د سیاسي تورونو له امله تالاشي شول او هغوی ونیول شول، نو که د حزبي ملګرو اطلاعات او راپورونه په دقیقه توګه وارزول شي نو شک نشته چې د ځینو وګړو په برخه کې به شخصي

مخالفتونه او دښمنۍ شتون ولري او که دا ډول کړنې دوام وکړي نو پایله به یې دا شي چې مونږ به خوش فهمۍ سره د انقلاب په زیان ګام پورته کړی دی. » والي په اصولي توګه زما ټولې خبرې منلې او تاییدولې، خو د سیمې د عقده لرونکو عناصرو لکه محمد هاشم دقیق مستوفی، امان الله کارګر، ظاهر افق، غوث الدین او د کمیټو د نورو غړو تر داسې اغېز لاندې راغلی ؤ چې د هغه په ناروا عمل کې هیڅ تغییر نه رامنځ ته کېده.

ما چې هر څومره هڅه وکړه ترڅو والي ګټورو او عام المنفعه کارونو ته تشویق کړم خو د هغه چاپېریال دومره منحرف او خچن ؤ چې زما خوارۍ هیڅ ګټه ونکړه. په پای کې مې دا فکر وکړ چې د دې فاسدې دستګاه څخه لرې شم. د دندې پرېښودلو او تېښتې ډېر خطرناک عواقب لرل، په کم وخت کې تبدیلي او د خدمت د میعاد له بشپړېدو وړاندې هم را ته ستونزمنه وه. دا تجویز مې ونیو چې د مور د ناروغۍ په پلمه به را سره په دې برخه کې والي مرسته وکړي. د فرصت په انتظار کې وم، ترڅو د ماښام په وخت کې په داسې حال کې چې والي نشه وي ور سره ملاقات وکړم او خپل دغه پلان عملي کړم. له مخکې نه د موجه (ضروري) عذر له امله د خپلې تبدیلۍ مکتوب په دوه نقلو کې د وزارت د مقام د ټیلفوني موافقې په اساس او همدا راز د خپلې دندې د پای ته رسېدو مکتوب چې د موجه عذر له امله زما په تبدیلۍ کې د وزارت د مقام د ټیلفوني موافقې له مخې باید د معاش له علم او خبر سره مرکز ته لاړ شم او د نوي قوماندان تر مقررېدو پورې د امنیت آمر کفالتاً دنده اجرا کړي. دغسې یو مکتوب د والي په لاسلیک د سمنګان امنیه قوماندانۍ ته صادر شي د دوه پاڼو علم و خبر د معاش سره برابره کړي او د والي د لاسلیک لپاره مې چمتو کړی وې.

ماښام چې والي په کور کې یوازې ؤ، په ټیلفوني اجازې سره کور ته ورغلم. خپل جیپ موټر مې رخصت کړ چې په امنیه قوماندانۍ کې ودرول شي. محمد نذیر یاور مې پوه کړ چې د ټیلفون تار په کوم ځای کې د موقت لپاره غوڅ کړي. که چیرې مستوفي او یا د ولایتي کمیټې کوم حزبي غړی د والي کور ته راشي نو چې د محمد

نذیر لخوا ورته وویل شي چې والی په کور کې نشته له امنیه قوماندان سره مزار شریف ته تللی دی.

د والی د کور د هرکلي کوټې ته ورغلم، یوازې ناست دی او نیم بوتل ودکا یې څښلې ده او موسیقي اوري. دومره سګرټ یې څګولي چې لوګیو فضا خچنه او کثیفه کړې ده. زما په لیدو والی ډېر خوشحاله شو، ویې ویل: «ښه دې چې ته راغلې، نن شپه بیخي ځانته وم، ملګري ټول کوم واده ته تللي دي.» زه هم ددې خبر په اورېدو خوښ شوم. ځان مې خفه او پریشانه ښوده، د خفګان څپه مې په مخ راخوره کړې وه. والي آشپز ته امر وکړ چې د شپې ډوډۍ راوړي، د طعام مېز ته کښېناستو، والي په دوه ګیلاسونو کې شراب واړول، او شعار یې ورکړ چې ژوندي دې وي د ثور پرتمین انقلاب او خپل ګیلاس یې پورته کړ او د چرګ د ورانه په خوړلو بوخت شو. لږه شیبه وروسته یې پام شو چې ما نه دي څښلي او ډوډۍ هم نه خورم. ویې پوښتل: «ولې؟» ومې ویل: «ما ته له کابل نه احوال راغلی دی، ډېر اندېښمن یم او ستا کور ته د دوستانه مرستې لپاره راغلی یم.» ویل: «خیر خو به وي، هرڅه مرسته مې چې له لاسه پوره وي، نه یې درېغوم، په کراره ډوډۍ وخوره.» ما ویل: «نه، ترڅو مې چې کار ونشي هېڅ شی مې خواته نه کېږي.» ویل: «ما له جریان نه خبر کړه، ژمنه کوم چې مرسته به درسره کوم.» د مور د ناروغۍ موضوع مې ورته داسې بیان کړه چې همدا اوس په روغتون کې د کوما په حالت کې بستر ده او د پرلپسې درملنې اړتیا لري، زه باید عجالتاً د وزارت د مقام په تیلفوني موافقه د احتیاط مرکز ته تبدیل شم، ترڅو د ناروغې مور د درملنې خدمت په ډاډه زړه وکړای شم. والي یو بل پیک هم وڅښل او ویې ویل: «د قوماندان د ناروغ په روغتیا او سلامتیا!» راته ویې ویل: «تیلفون خانې ته ووایه چې لومړی ترون او بیا وطنجار رخ کړي.» د کړکۍ له لارې مې محمد نذیر ته اشاره وکړه ترڅو د تیلفون لین جوړ کړي، تیلفونخانې ته مې وویل: «والی صاحب ترون او وطنجار سره په عاجله توګه مخ کړه.» زنګ راغی، والي له دواړو مقاماتو سره یو په بل پسې زما په اړه دومره خبرې وکړې تردې چې د دواړو قناعت یې حاصل کړ. زه عجالتاً له علم و خبر سره

نورو مامورینو په شان په رشوت اخیستلو مشهور ؤ. د وزارت مقام ته چې ورسېد نو له پولنیز نظم څخه هېڅ خبر نه ؤ. همدا رنګه د دفاع وزیر چې په رشوت او قاچاق معروف ؤ، په اردو کې د ننه له سیاسي جریاناتو څخه یې هېڅ خبر تیا نه لرله. بې کفایته وزیرانو په دربار کې د داودخان شاوخوا داسې رااحاطه کړې وه چې د ناسمو راپورونو په وړاندې کولو سره یې داودخان له ډېر نږدې رامنځ ته کېدونکي وسله وال پاڅون له ګواښ څخه بې خبره ساتلی ؤ. دا د داودخان یوه ډېره غټه تېروتنه وه چې د دولت د ډېرو مهمو ادارو واګې یې په بشپړ اعتماد سره بې کفایته او نااهله اشخاصو ته سپارلې وې چې په پای کې دده د وژنې او د رژیم د نسکورېدو باعث وګرځېده. جوته ده چې د خیبر د جنازې په اړه د غونډې او لاریون جوړېدل او د مخالف ګوند په توګه د دولت په خلاف ویناوې او رول په څرګنده د رژیم د اساسي قانون څخه مخالفت کول وو، ځکه په اساسي قانون کې یو ګوند د ملي غورځنګ په نوم جوړ شوی ؤ چې دولتي کارکوونکي په کې شامل وو او په سر کې یې سردار محمد داودخان ؤ. په هېواد کې نور موجود سیاسي تحریکونه او ګوندونه ناقانونه وو او د فعالیت اجازه یې نه درلوده. د د. خ. ا. د ګوند غونډې، لاریون او ویناو، دولت دې ته وهڅاوه ترڅو د یوې بېړنۍ غونډې په ترڅ کې د هغې د مشرتابه پلاوي د نیولو په هکله تصمیم ونیسي.

## د نیولو لپاره د ګروپونو جوړول، او د پولیسو د چمتووالي او عمل کولو طریقه:

د ژاندارم او پولیسو د عمومي قوماندانۍ په چوکاټ کې د ننه درې میاشتې وړاندې، د قانوني مسودو، د جنایي، حقوقي، قاچاق، پاسپورت، جلب او احضار او د باقیاتو د راټولولو مسایلو په اړه د مسودو، اصولنامو او مقرراتو د تاکلو په مرخه یو باصلاحیته کمیسیون په کار ګمارل شوی او ټاکل شوی ؤ. زه هم د مسودې د احضار او د باقیاتو د تحصیل د مقرراتو جوړولو لپاره د یوه کمیسیون په مشرۍ ټاکل شوی وم ترڅو په اوږي کې دوه ورځې د پولیسو په اکاډمۍ او کله هم د عمومي